اَلنِّكَاحُ مِنْ سُنَّتِیْ (الحدیث النبوی صلی اللہ علیہ وسلم)

# تحفۃ النکاح
## (یا)
## آدابِ مباشرت




حضرت مولانا محمد ابراهیم صاحب پالن پوری
شیخ الحدیث مدرسه عربیه تعلیم الاسلام آنند (گجرات)

پښتو ژباړه:
ابو مزمل آخند زاده



ناشر:
مکتبه رحمانیه، کانسی روډ کوئٹه 0333-7806049

اَلنِّكَاحُ مِنْ سُنَّتِیْ (الحدیث النبوی ﷺ)

# تحفة النکاح

(یا)

# آدابِ مباشرت

د کوزدې، وادہ، او اولی شپې څخه نیولی تر ولیمې، عقیقې پورې خاوند او ښځې ته درسول ﷺ دسنتو په رڼا کې دټول ژوند تیرولو داصولو طریقو او آدابو بهترینه مجموعه.

**حضرت مولانا محمد ابراهیم صاحب پالن پوری**
شیخ الحدیث مدرسه عربیه تعلیم الاسلام آنند (گجرات)

**پښتو ژباړه:**

ابو مزمّل آخند زاده

**ناشر:**

**مکتبه رحمانیه، کاسي روډ، کوئټه : 03337806049**



## د کتاب پیژند پاڼه :

نوم :: تحفة النکاح یا آدابِ مباشرت

مصنِّف :: حضرت مولانا محمد ابراهیم صاحب پالن پوری

ژباړه :: ابو مزمّل آخند زاده

تصحیح :: مولانا حافظ محمّد احمد الحقّانی

کمپوز :: حافظ نور احمد نورانی

اداره :: العلم کمپیوټرز ، کوټه ، پاکستان ☎ : 03218016371

ناشر :: مصطفیٰ خان (ماشوم)

مکتبه :: مکتبه رحمانیه، کاسی روډ کوټه . ☎ : 03337806049

قیمت :: ۳۵ روپیه



---

**خبرتیا :** د هر قسم قرآن کریم ، پارې ، یٰسین او عربی ، پښتو ، فارسی دینی کتابو د پاره زمونږ مکتبې ( **مکتبه رحمانیه ، کاسی روډ** ) ته رجوع وکړئ ، په ارزانه قیمت ښه چاپ ترلاسه کړئ .

# فهرست

| شماره | مضمون | مخ |
|---|---|---|

ناشر:

مکتبه رحمانیه ، کاسی روډ ، کوئټه . : 03337806049

Maktabah Rahmaniyah, Kasi Road , Quetta

کمپوزنگ اینډ ډیزائننگ :

العلم کمپیوټرز ، کوئټه ، : 032180216371

AL-ILM Corporation Ltd

Hafiz Noor Ahmad Noorani




# دمترجم عرض :

اسلام یو مکمل مذهب دی ، چی دزندګی په هره شعبه کی یې انسان ته واضح هدایات عطآء کړیدی ، خاتم النبیین والمرسلین حضرت محمد صلی الله علیه وآله وسلّم چی آخری نبی او رسول دی ، تر قیامته پوری دراتلونکو ټولو انسانانو دپاره یوه بهترینه او اعلی نمونه دی، لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ .

ترجمه : په تحقیق دی تاسی لره په رسول دخدای کی خوی نیک .

ساقی کوثر ، شافع محشر ﷺ دزندګی په هره شعبه کی دانسانانو درهنمائی دپاره بهترینی او روښانه نمونی پریښبی دی ، ددې په اختیارولو سره انسان ددارینو کامیابی او کامرانی تر لاسه کولی سی، په دې دنیا کی دسکون او آرام او په آخرت کی به دخدای ﷻ په رحمت کی ځای او مقام حاصل کړی .

لیکن حسرت او افسوس دی چی نن دپیغمبر رحمت ، مُحسن انسانیت ﷺ امت دیورپ او مغرب په تقلید کی دسید المرسلین ، محبوب ربّ العٰلمین ﷺ بهترینی طریقې تر شا غورځولی .

دښځی او سړی دژوند ټیرولو متعلق اسلام واضح او روښانه هدایات انسان ته ښوولی دی ، چی مسلمان دالله تعالی داحکامو او سید الاوّلین والآخرین ﷺ پر پاکیزه طریقه خپل شهوت پوره کړی ، او که معامله

برعکس سی نو بیا دمختلفو امراضو سره سره به دنیاوی او اخروی زندگی هم تباه او برباده وی، دمخبر صادق ، صادق مصدوق ﷺ دپاکیزه طریقو پرېښوولو مطلب دادی : خَسِرَ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ، په دنیا کی هم خساره (او نقصان) اوپه آخرت کی هم خساره (او نقصان) .

دمولانا محمد ابراهیم صاحب پالن پوری مرتب کړی رساله (تحفة النکاح یا آدابِ مباشرت) دښځی او خاوند دجنسي تعلق په باره کی مشعلِ راهِ حیات ده ، په دې رساله کی یې دهدایاتو سره سره سنت طریقې، آداب ، فضائل ، تجاویز ، مختلفی طریقې ، او دحکماوو او اطباوو اقوال وغیره بیان کړیدی ، نوپه مجموعی حیثیت سره دا رساله دعوامو او خواصو بالخصوص دځوانانو دپاره ډیره مفیده ده .

راقم الحروف ددې په آسانه او روانه پښتو ژبه کی ترجمه کړیده ، او دکتابت اوچاپ بار یې د مکتبه رحمانیه ، کاسی روډ ، کوئټه ، مالک ښاغلی حمید الله حنفی صاحب پر اوږو واخیستی ، الله تعالی دی دارساله دمصنف رح او مترجم او کاتب او ناشر دپاره صدقه جاریه او ذریعه دنجات وګرځوی. ع :

این دعا از من واز جمله جهان امین باد

ابو مزمل اخندزاده عفا الله عنه

تصحیح : مولانا حافظ محمد احمد الحقانی الافغانی عفا الله عنه

بسم الله الرحمٰن الرحیم ط

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ، وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰی جَمِیْعِ الْاَنْبِیَآءِ وَالْمُرْسَلِیْنَ خُصُوْصًا عَلٰی سَیِّدِ الرُّسُلِ سَیِّدِنَا مُحَمَّد الْاَمِیْن وَعَلٰی آلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ وَاَزْوَاجِهٖ وَاَتْبَاعِهٖ اَجْمَعِیْنَ اِلٰی یَوْمِ الدِّیْنِ . اَمَّا بَعْد :

دا وخت دخدای پاک ﷻ په فضل او کرم او دتبلیغی جماعت په سختو محنتو سره ددین طرف ته چی کومه عامه توجّه کیږی ، په دې کی خاص طور نوجوانه طبقه ډیره زیاته متوجّه ده .

دهغو متعلق ددوستانو په ذریعه دا خبره معلومه سوه چی هغوی دسنتِ رسول (علی صاحبها الف الف سلام) شیدایان او عاشقان دی ، او دخپلی ځوانی ټول ژوند دحبیبِ پاک ﷺ دسنتو او داسلام دپاکو او ساده طریقو مطابق تیرول غواړی ، دې ځوانانو ته دټولو څخه اهمه مسئله دځوانی حفاظت او دواده ، کوزدې مخ ته راتلونکی معاملات او کورنی تعلقات دی ، او غواړی چی ددې قسم دینی کتابو اومذهبی معلوماتو څخه ډکو رسالو مطالعه وکړی، لیکن دا یو اتفاق وګنی چی دواده ، کوزدې (متعلق) او بیا دخپلی

(بی بی) سره کیدونکی اندرونی تعلقاتو او معاملاتو باندی مشتمله څه بنه رساله موجوده نه ده ، نتیجه یی دا وی چی کله دواده وغیره موقع راځی نو دغیرو دکتابو څخه کار اخلی ، چی په هغه کی انتهآئی فحش مضامین او اخلاق سوز (اخلاق سوځونکی) خبرونه او مضامین وی .

ددوستانو اصرار وو چی په دې موضع باندی ددینی مزاج مطابق یوه رساله دځوانانو مخ ته راسی ، نوډیر بنه ، ددې دپاره چی دغیرو کتابو دکتلو ضرورت بالکل پیښ نه سی ، او خپله زندګی (ژوند) درسول الله ﷺ دسُنتو مطابقه تیره کړی، ددوستانو دا خواهش ډیر بنه مناسب وو اودهغو دخواهش احترام زما پرذمه ضروری وو، مګر په شروع کی په طبیعت کی کافی تردّد وو ، او بیا په دې موضوع باندی دمضامینو تیاری یوه لویه اهمه مسئله وه ، خصوصاً چی ددې قسم (مضمون مطابق) بنه او بهترین کتابونه هم میسّر نه وو .

لیکن ددې احساس ضرور وو ، چی موضوع خو اګرچی عجیبه ده ، لیکن ضرورت ددې رسالې ډیر زیات دی ، او څه لیری ده ؟ چی دسنتِ رسول الله ﷺ دژوندی کولو چی بشارتونه پُر ورکړل

سویدی په هغه کې شرکت وسی ، او دسعادتِ دارین ذریعه جوړه سی، دالله تعالی په فضل اوکرم مې اعتماد وکی، هغه زما دستګیری (امداد) وکی، او دډیر کوشش څخه بعد رساله تیاره سوه ، الله پاک ﷻ دی زما کوتاهیانی معاف کړی ، اودا رساله دی قبوله وفرمایي ، او دټولو خلګو دپاره دی مفیده وګرځوی . وَمَا ذٰلِكَ عَلَى اللهِ بِعَزِيْزٍ .

(حضرت مولانا) **محمد ابراهیم پالن پوری**، خادمِ حدیث نبوی ﷺ مدرسه عربیه تعلیم القرآن ، تعلیم الاسلام ، آنند ، ګجرات



## دځوانۍ ابتدآء :

دهلک بلوغت (ځوان کیدل) په شریعت کې په مختلفو علامو سره پیژندل کیږی، داحتلام کیدل وی، یادهغه څخه دیوې ښځې حمل کیدل، یا دشهوت سره انزال کیدل، لیکن که دغه شان یوه علامه دبلوغ نسی ظاهره ، نو دپنځلس ۱۵ کاله پوره کیدو سره په شریعت کې بالغ شمارل کیږی .

دجینکې دبالغ کیدو علامات دحیض راتلل ، یا احتلام کیدل ، یا حمل کیدل ، یا دبیداری په حالت کې په شهوت سره منی وتل ، او

که یوه علامت هم ظاهر نسي نو پر پنځلس ۱۵ کاله بانـدی بالغـه شمارل کیږی .

لمونځ ، روژه او نور احکام پر هغې فرض کیږی ، اوس که دغفلت یا نادانی په وجه دهغه په ادا کولو کی کوتاهی کوی ، نو دهغو قضا او تلافي کول ضروری وی .

دبالغ کیدو څخه مخکی کوچنی دمور او پلار تابع وو ، دشـریعت دطرف څخه په هغه شی فرض نه وو ، لیکن اوس دبالغ کیدو څخه بعد هغه مستقل سړی شمارل کیـږی ، او دشـریعت مطهـرة ټـول احکام دهغه طرف ته متوجه کیږی .

## دځوانی جذبات او اُمیدونه :

په عربی ژبه کی یوحکیمانه جمله ده : الشَّبَابُ شُعْبَةٌ مِّنَ الْجُنُوْنِ ، ترجمه : یعنی ځوانی دجنون (لیونتوب) یوه حصه ده .

او حقیقت دادی چی په کوچنی کی دځوانیدوسره قسم قسم جذبات ، قسم قسم اُمیدونه څرګند کیدل شروع کیـږی ، او دشـا وخـوا معاشرې ، او دناستی ولاړی دماحول مطـابق دهغـو پورتـه کیـدل شروع کیږی ، اودیو نوجوان کوچنی دپاره دا ډیر خطرناک او اهم موړ (پړاؤ) دی .

## دځوانی صحیح حفاظت :

مور او پلار ته پکار دی چی دکوچنی دځوان کیدو سره دهغو بنـه خاص خیال وساتی ، دغلط قـسم ملګـرو او دوسـتانو څخـه دده دلیری ساتلو پوره کوشش وکړی .

دغه شان دسینماګانو، تماشاګاه، فلمانو، افسانو، لڅ عکسو څخه داخلاق سوز شیانو څخه یـې پـوره محفـوظ وسـاتی ، دښـځو او جینکیو دمحفلو ، او اختلاط څخه یې ډیر لیری وساتی ، ځوانانو ته په خپله هم ددې تمامو خبرو څخه بې پایانه (ډیـره) احتیـاط کـول پکار دی، که نه وی نو که دځوانی بالکل په ابتـدآء کـی دخرابـی طرف ته ولاړی ، نو بیا دغه صحیح رُخ (لاری) ته را واپس کول تر غره زیات درووند دی، او دعزت دختم کیدو سره سره دصـحّت او قوت ضآئع کیدو هم سخته خطره ده ، دغه یوه موقع داسی ده چی په دې کی خرابی دمستقبل پوره زندګی بربادوونکی ده .

ځکه په انسانی فطرت کی یـې دوې مـادی ایـښوول دی : ۱. یـو خواهش نفسانی ۲. دوهم محبـت ، دوسـتی ، اُنـس او دځـوانی بالکل په شروع کیدو سره په دې دواړو مـادو کـی حرکـت پیـدا کیږی ، او پورته چی مو دکومو خبرو څخه دځان بچ کـول وپلـی

دی ، ددې شیانو څخه په دواړو مادو کی حرکت او پورته کیدل دی، او بیا عقل هم په دې موقع باندی ناقص سی، ددې دپاره ډیر ژر په غلطو ځایونو کی دعشق او محبت تعلق وسی ، په غلطو ځایونو باندی خپل دخواهش پوره کولو کوشش کوی ، او په بد کارې کی مبتلا سی ، اوکه په غلط ځای کی ددوستی موقع ملاؤ سوه ، یا دخپل طبیعت په اعتبار ډیر بی باکه ، جری (زړه ور) نه وی نوبیا دخپل خواهش پوره کولو دپاره غلطی او غیرِ فطری طریقې لټوی او داغلام (۱) او جلق ددارنگه عادتو عادت یې سی ، چی دین او دنیا دواړه برباد او صحت یې ختم کیږی ، بلکه ډیر ځلی په مستقبل کی دواده قابل نسی ، او کرار کرار دمړاوی گل په شان دهغه ټوله زندگی پږمرده کیږی ، او هم دغه شان دغلطو عادتونو څخه ډیرځلي دسوزاک اوآتشک غوندی ناکاره بیماری پیداکیږی، چی دهغو علاج ډیر گران دی ، ددې دپاره دپنځلسو کلو څخه تر دوه ویشتو ۲۲ کلو عمر پوری ددې خاص اهتمام کول پکار دی (دې ځوانانو هلکانو ته) چی انتهائی پاکیزه کتابونه او ښکلی

(۱). دهلکانو سره بد فعل ته إغلام وایی او په خپل لاس وغیره سره منی ایستلو ته جلق وایی .

(بهترین) لټریچر (مضمون) مطالعه کوی ، او دنیکانو (صالحانو) په مجلسو کی دی آمد اورفت وساتی، په دې دوران کی که (ځوانانو) دخپل صحت او ځوانۍ حفاظت وکړو، نو آئنده (راتلـونکی) ټـول ژوند به یې په عافیت اوخوشحالی سره تیرسی، او که په دې (نازک) وخت کی ورته غلـط او ناکـاره صـحبتونه مـلاؤ سـوه او خـراب عادتونه پکښې پرېوتل نو خطره ده چی دمرګ او ژوند په کشمکش کی مبتلا سی او ژوند پر تنګ سی .

## دځوانۍ حفاظت څنګه پکار دی ؟

۱. هر کله چی کوچنی با شعوره او پوه سی (چی دهغه عمر عمومًـا اوه ۷ اته ۸ کاله دی) نو هغه دی په جُدا جُدا بـستره ویـده کولـو عادت کړل سی ، اګر که هغه محارم یعنی وررور ، خور وی ، خـو شرعًا یو ځای ویده کیدل منع دی ، ځکه چی په دې وخت کی هم دهغو داخلاقی خرابی اندیشنه ده ، اوبیا دغیر محرمو سـره نـورهم ډیر احتیاط ضروری دی .

۲. دبچیانو دپاره بالکل په خلوت او تنهایی کی (داسی چی په کمره کی بل څوک نه وی) اوسیدل او ویده کیدل ښه نه دی، ورنه دهغو په ذهن کی انتشار پیدا کیږی، چی دمختلفو خطراتو باعث ګرځی،

تولو ته په جُدا جُدا بستره ویده کیدل پکار دی .

۳. دځوانۍ په ابتداء کې دبدن صفائی په خاص طور سره داعضاء تناسل صفائی ډیره ضروری ده ځکه چې ( پر ځرمن ) خیرې میری جمع کیږی ، خارش پیدا کیږی ، او دځرمنی بیماری پیدا کیږی ، بل دا چې په ګرولو سره شهوت او لذّت پیدا کیږی او نقصانی اثرات ترې ظاهره کیږی ، تر نامه لاندی وریښتان صفا کول هم ډیر ضروری دی .

## دوریښتانو وغیره دصفایی موده :

بهتره داده چې هره هفته بالخصوص دجمعې په ورځ دی صفا یی کوی ، یعنی نوکان ، بریت برابرول ، ترنامه لاندی وریښتان او دبغلو دصفایی څخه بعد دې غسل وکړی، دنامه لاندی او دبغل دوریښتانو صفایی که هره هفته ونکړل سی نو پنځلس ۱۵ ورځی وروسته دی یې وکړی، انتهایی موده یې څلویښت ۴۰ ورځی دی، څلویښت ۴۰ ورځی که تیری سی او صفایی ونکړی نو ګنهګار به وی .

۴. ځوانان بچیان دی په یوښه کار کې مشغوله وساتی ، بی کاره ساتل ډیره بده خبره ده ، یو دانا (عقلمند) ویلی دی، او ریشتیا

(صحيح) يې ويلي چې: (بې کارې بدترينه مشغله ده) ، په دې (بې کارې) سره ډير ژر آوارګي (لوپرې) پيدا کيږي .

۵. دخرابو دوستانو ، خراب ملګرې ، او خراب صحبت (مجلس) څخه ليرې اوسيدل ډير زيات ضروري دي ، دخراب صحبت څخه خوښه (خلګ) هم خرابيږي ، بيا خو دا نو عمره ځوانان دي .

۶. غلط لټريچر ، افسانې ، ناول ، عشقيه قصې او حکايات ، صحبت نامې وغيره ويلو سره نفساني خواهش او رغبت مشتغل کوي، انسان پر غلطه لاره وړي ، ددې څخه ځان ساتل نهايت ضروري دي .

۷. دغه رنګه سينما ، تماشاګاه ، فلمي عکسونه کتل ، غزلي ويل اوريدل ، دځوانو انجونو سره سترګي ملاورول ، بد نظرې وغيره کول ، دا ټولې خبرې دزهرو څخه کمې نه دي ، ددې څخه هر سړې لره خصوصاً ځوان لره ساتل ډير ضروري دي .

۸. که په کور کې نوکر (ملازم) يا ملازمه (خادم) او بوډۍ ښځه وغيره ځي راځي نو ددې کور دبچيانو پر تعلقاتو باندې مضبوطه (مستحکم) نظر ساتل پکار دي ، ورنه کله کله هغه په خندا او مزاق کې تباه کوي .

۹. مور او پلار لره ښکار دی چې داولاد د ښیګڼې او اصلاح دپاره همیشه دالله تعالی څخه دعا وغواړي .

۱۰. دنیکانو سره دمیلان اورجحان ، اوپه ښه صحبت کې دناستې ولاړې او دبهترینو دیني کتابو اورسالو دکتلو ترغیب دې ورکوي.

## داصلاح طریقه :

دبچو دځواني او دهغو دصحت تر ټولو لویه فریضه پر مور او پلار او دکور پر مشرانو راځي ، هغو ته ښکار ده چې دنو عمره بچیانو په هر هر حالت اوعادت باندې نظر ولري ، اوپه ډیر حکمت او دانائي سره دې یې دغلطو شیانو څخه ګرزوي ، ددوی دجذباتو او عمر په رعایت ساتلو سره دې هغو ته) ښه واقعات بیان کړل سي ، او بلند همت ، لوړې حوصلې ، پُرِ مغز او دتحقیقي کار کولو شوق دې ورکړل سي، ذهن یې په دې کې مشغوله وساتي، دغه رنګه چې څه وخت خپله څه ښه کار کوي ، یاښه مجلسو ته ځي دصلحاء سره ملاقات کوي ، نو بچیان هم دځان سره ملګري کوي ، چې دهغو برکات هغوته هم نصیب سي، او دماشوموالي څخه ددې شوق پیدا وي اومزه (رغبت ، میلان، مینه ، دښه مجلسو، دصلحاوو دملاقات) پکښې پیدا سي .

## واده کله کول پکار دی ؟

دځوان کیدو بعد اګر چې دواده خیال او دهغه طرف ته میلان (رغبت ، شوق) کیږی ، لیکن بالکل په ابتدآئی ځوانئ کی واده کول دصحت دپاره مضر دی ، ځکه چی په دې عمر کی جسمانی اعضآء لوییږی ، په اعصابو کی قوت او پوخوالی پیدا کیږی ، که په دې عمر کی واده وسی نو داعصابو دمضبوطوالی ځخه مخکی به دبدن جوهر (ماده منویه) ختم کیږی ، اودی دخپلی نادانی اوپه خپل طبیعت قابو نه راوستلو په وجه احتیاط هم نه کوی ، چی ددې ځخه اعضآءِ رئیسه هم کمزوری کیږی، ځکه دغذا انسانی دځومره حلول ځخه بعد منی جوړیږی، په هغی کی خالقِ کآئنات دانسان دجوړیدو قوت ایښی دی، اوس که دومره قیمتی جوهر (منی) دعقل او شعور دکمی دوجهی داعصابو دکمزوری سره ضآئع کیدل شروع سو، نو بیا ټوله غذا (خوراک) دمنی خزانې طرف ته متوجّه کیږی ، او دوینی ځخه تیاریدونکی اعصاب او اعضآء په کمزوری کیږی .

دی نوعمر ځوان لره دخپل صحت اوقوت حفاظت کول پکار دی، اوپه غلطو حرکتو سره ماده منویه (منی) ضآئع کول نه دی پکار،

بیا څه موده وروسته چی اِزدواجی (کورنی) رشته قائمه سی نو هغه لطف او لذت او سکون به تر لاسه کړی چی دهغه تصور ممکن نه دی، البته که دځوانیدو سره چیری یې کوزده وسی نوبنه ده، څکه چی دصحبت او فطری خواهش دجذبې دپاره به یو مرکز په ذهن کی دلنشین سی او دخیال دنیا به یې ددلته او هلته دګمراهی او دغیر وطرف ته دتلو څخه محفوظ وی، لیکن یاده دی وی (دا خبره) چی دواده څخه مخ کی (اګرچی) کوزده وسی، هغه (جینۍ) اجنبی (پردۍ) ده، دنکاح مخکی هغې ته لاس لګول، دهغې سره خبری کول، هغې ته کتل ناجائز او حرام دی.

## درشتی (کوزدی) کولو آداب:

دهلک دځوانیدو بعد چی کله دهغه دکوزدې خبره اوسی نو بهتره داده چی مخکی دی دهغه رایه معلومه سی، که هغه په خپله څه ونه وایي نودهغه دملګرو او دوستانو په ذریعه دی دهغه دزړه درغبت (خوښۍ) حال معلوم کړی، که دهغه دلی رغبت په یوه ذریعه معلوم سی، نو دهغه مشران دی په هغه جینۍ دهغې دخاندان په حالاتو او دینداری باندی نظر وکړی، دغه شان دادی هم وګوری چی په دوارو کی ګذاره کیږی او که نه؟ که په دوارو کی موافقت په نظر

ورسی ، نورشته دی ورسره وکړی دلته ددې خبری خیال دی وی چی دهلک درایی بالکل برخلاف یا دهغه په لا علمی کی یوځایی رشته (کوزده) کول دعقلمندی خبره نه ده ، ددې دپاره چی ټول عمر ددې سره اوسی ورنه (که داسی ونه سی) خطره ده چی په هغو کی بې لطفی (بد خوندی) پیدا سی، او دجوړ پرځای به لیری والی سی، لهٰذا دده دزندګی مفاد مخ ته په ابنبوولو سره دده په خوښه کوزده تمامه کړی، هو که مور اوپلار ته اندازه وی چی هلک دخپل نفس شرارت او طبعی آزادۍ په وجه سره زموږ خوښ کړی بنه ځای پریږدی ، په یوه غلط ځای کی کول غواړی، نو هغه پوه کول او چیری چی رشته (مور اوپلار) ورته کوی ، دهغه ځای خوبیانی او فوائد (دهلک په) ذهن کی کښېنول (دمور او پلار) اخلاقی فریضه ده ، دغه رنګه به (په) خندا ، خوشحالی کوزده هم وسی، او دمور اوپلار دطرف ښخه به زړه هم صاف وی ، او څه رنجش به هم پیدا نسی ، بیا درشتو (کوزدو) کولو دپاره دلاندنیو خبرو لحاظ کول بهتر دی :

۱. دجینکۍ عمر دهلک ښخه (باید) څه کم وی (زیات دی نه وی) یعنی دجینکۍ عمر دی دوه یا څلور کاله کم وی.

۲. دنو عمره هلک دپاره پيعله جينكۍ زياته مناسبه ده ، ددې دپاره چې دحديث پاک دارشاد مطابق په دوی کی ښه محبت او موافقت پيدا سی .

## درشتې (کوزدې) ښخه مخکی يو نظر کتل :

۳. درشتې (کوزدې) کولو ښخه مخکی دی دواړه يو بـل يـو نظـر سره وګوری ، چنانچه درسول الله ﷺ ارشاد دی، چـې منکوحـه وګوری، په دې صورت کی امید دی چی په دواړو کی محبـت او مينه زياته پيدا کيږی ، ددې وجه داهم ده چی ډير وختونه پردا قسم موقعو باندی په اوريدلو خبرو سره انسان په خپل ذهن کی څه ډيره ښه نقشه جوړوی ، او بيا وروسته مخ ته په راتلو باندی هغه (دذهنی نقشې مطابق) خوبيانی پکښې نه وی ، نو بيا ترجنګ پـوری خبـره رسيدی سی .

دوهمه وجه داده چی دهر سړی خوښه جلا جلا وی ، کيدی ســی چی اوريدل سوی خبره وی هغه دده خوښه وی ، او ستا خوښه دده څخه مختلفه وی، دپښتو مشهورمتل دی : هر سړی او خپل طبيعت پوره سو .



## ددینداری خیال :

۴. دجینکی په انتخاب کی ضروری ده چی دهغې أخلاق ، او په امورِ خانه داری کی واقف کیدلو ته ضروری وکتل سی ، په دې سلسله کی درسول پاک ﷺ ارشاد مبارک مونږ ته بهترینه لار ښیي چنانچه رسول الله ﷺ فرمايي: دښځی سره نکاح دڅلورو خبرو څخه دیوې خبری دلحاظ په ساتلو سره کیږی ، څوک حُسن او جمال ګوری (نکاح) کوی ، څوک په دې کی دمال طرف ته نظر کوی ، اوڅوک حسب یعنی دلوړی کورنۍ جینکۍ لټوی ، لیکن کامیابه هغه سړی دی چی هغه دینداری ګوری نکاح کوی .

که غور وکړی نو اول درې شیان په حقیقت کی دانسان دپاره وبالِ جان جوړیدی سی، مثلاً حسن او جمال ډیر ښه او زړه مآئل (خوشحاله) کوونکی شی دی .

مګر زما عزیزانو! هغه (حسن او جمال) ډیر ژر زائل کیدونکی هم دی، خدای ﷻ دی نه کوی (که پرهغې) دچیچک (١) معمولی غوندی حمله وسی، یا یوضرب یا بیماری راسی او هغه حسن او جمال ټوله ختم سی، او هسی هم هغه ابتدایی حسن او جمال دځو

(١). چیچك : دیوې بیماری نوم دی ، چی دمریض پر بدن دانې راوخیژی.

کلونو میلمه دی، کله چی څه موده تیره سی داولاد سلسله شروع سی، نودهغه شی (حسن او جمال) ختم کیدل شروع کیږی.

یوه خبره داهم په ذهن کی وساتی: که تا دحسن او جمال کوشش وکړی، نو آخر به هغه ته په خپل حسن او جمال نازوی (چی یو وخت بیا دا دردِ سر سی) لهٰذا اول سوچ وکړه چی دهغې ناز او نخرې ته برداشت کولای سی او که نه؟

بیا پردې حسن باندی دنورو (خلگو) نظر هم وی، لکه څنگه چی تا ددې اراده وکړه، نور خلگ به هم ددې خواهش مند وی، داسی نه وی چی ستا په نکاح کی دراتلو بعد هغه خلگ ستا په حق کی وبالِ جان (دښمن، تکلیف، ضد او رقابت) جوړ سی.

دغه رنگه ددې (خبری) دی هم خیال وی چی ته دحسن او جمال شیدائی یې، هغه هم دځان دپاره دحسن او جمال جامه غواړی، لهٰذا خپل متعلق غور وکړه، چی ته ددې همسر (برابر) یې که نه؟ ورنه داسی به وسی چی ته به دهغې خواهشمند یې او هغه به ستا څخه بیزاره (نفرت کوونکی) وی، نو ددې دپاره به هغه دخپل ټول څه قربانولو دپاره تیاره وی، او هغه به ستا څخه دلیری اوسیدو تدبیرونه کوی، په دې جوړه (خاوند او ښځه) کی لطف څه دی؟

ددې دپاره دینداری پرېښوول فقط حُسن او جمال غوره کول حضور ﷺ خوښ کړی نه دی، البته که څه قدر ذل ربا وی نسو زیاته ښه ده .

## خاندان او مال او جمال ته مه ګوری :

څه خلک هغه وی چی دهغو په نظر کی دمال او دولت بې پناه اهمیّت او دهغه (مال او دولت) وقعت او عظمت وی، او هغه یو مالداره ښځه پردې بنیاد غواړی چی دکور عزّت وی، اوکور آباد سی، ای زما عزیزه ! دا خو ترحسن اوجمال هم ژر زآئل کیدونکی دی، دمانښام مالداره سهار ناداره لیدل سوی، بیا هم شاید ته دوکه کیږی چی هغه مالداره ده ، نه (داسی نه ده) بلکه ددې کور والا مالداره دی، آیا دهغو مال ددې ښځی سره راځی ؟ او که راغلی (دا مال) نو ځنګه ستا مردانه غیرت ددې دپاره تیار هم دی چی ته سړی او خاوند یې دښځی پر مال او دولت باندی لاړی وڅڅی ،

اوکه هغه دمالدار کور وی ، نودهغې ضرورتونه او فرمائشونه هم د هغه اندازې وی ، آیا په تاکی ددې دپوره کولو حوصله هم سته ؟ ظاهره ده چی دفیل خوراک دهغه پکار دی، هغه ستا په معمولی وچه ډوډی باندی به قناعت ځنګه کوی ، بیا به هره ورځ لعنت

ملامت اوری، او مرورېدل او پُخلا کېدل به دورځی ورځی مشغله وی، او هغه به پرتا حاکمه وی، که دا تو له لذتونه تاته منظور وی نو بیا نکاح (ورسره) وکړه (بیا) وګوره چی هغه ستا فرمانبرداره ښځه ده او که حاکمه ؟ ددې دپاره هوښیارانو ویلی دی، او صحیح (درست) یې ویلی دی: چی په مالداری کی ښځه تر سړی کمه مناسبه ده ، چی شکر ګذاری او نعمتو قدر وکړی .

څه خلګ په نکاح دلوړو (اوچتو) کورو او ښه خاندان تلاش (جستجو، کوشش) کوی چی دهغو په وجه سوه عزت حاصل وی، او پر نورو (خلګو) فخر وکړی، داسی خلګو ته ددې خیال ساتل پکار دی چی دخاندانی نیک وبد مسئله په خپله غیرِ متعینه او دشریعت په نظر کی غیرِ معتبره هم ده ، بیا ددې له وجهی ځخه دهغو پرېشانیو خطره هم ده ، چی په پورته (بیان کی) دمال (دولت) او جمال په صورت کی بیان کړل سوی دی .

ددې دپاره صفا خبره داده که دینداره نه وی ، نو مال او جمال یا حسب او نسب مطلق قابلِ اعتماد نه دی، دغه رنګه دبې دینی په صورت کی دښځی عفت (پرهیزګاری) او پاک دامنی هم په خطره کی وی چی دهغې اصل جوهر دی .

ددې دپاره په ښځو کی دلیدلو لائق تر ټولو اهم شی دینداری ده ، که هغه دلمانځه ، روژې ، پابنده وی، دښه اخلاقو سره متفقه وی او دکور دکارو سره واقفه وی، او دهغې کورنی هم دینداره وی، نو ای عزیزه ! تردې زیات یو نعمت سته ؟ دا هغه جوړه ده چی هغه رسول الله ﷺ خوښه کړیده ، ذدینداری په سلسله کی ددې هم لحاظ وکړی چی دهغې عقآئد څه دی، خیالات اورجحانات (میلان او توجّه) یې څنګه دی، په دې کی ایمانی جذبه سته که نسته لکن خدا نخواسته که دنوی تعلیم اثرات اوبی حیایی او بی حجابی (بې پردګی) پکښی وی، نو خطره ده چی تاهم دځان سره ډوب غرق کړی، او خپل اولاد هم پردې رخ (لار) روان کړی، ددې (رنګه ښځی بد زبانه او فحش ګو (ښکنځل او پوچ اورد ویونکی) کیدل، دسیر او تفریح (منظرو او سیلو) شیدائی (دلداره) کیدل، او دخپلو او پردیو سره اختلاط او میلان او رجحان نقصان رسوونکی دی، او ددغه رنګه ښځی سره تعلق هم مفید نه دی،

دغه رنګه دښځی په انتخاب کی لاندنی خبری هم وګوری :

۱ . تندرسته وی، په څه هلاکوونکی مرض کی مبتلا اودآئم المرضه نه وی، ۲ . چی په خپل خاندان کی وی نو بهتره ده ، چی صله

رحمی هم وسی، ۳. ددوارړو مزاج (طبیعتونه) تقریبًا یو قسم وی، مثلاً یو ډیر شوقی وی او بل انتهایی ساده مزاجه وی، نوبیا هم پرِ لُطف زندګی ګرانه ده ، ۴. څه قدر ویونکی لیکونکی او دینی تعلیم یافته وی، بالکل جاهله نه وی، ددې خبرو لحاظ لکه څنګه چی دهلک کور والا یې کوی دغه رنګه دی یې دجینکۍ کور والا هم وکړی، ددې وروسته چی دکوزدې اراده وی نوپه سنت طریقه باندی دی اودس یا غسل وکړی، څلور رکعته دی وکړی ، دوه دصلوة الحاجة ، دوه دصلوة الاستخارة په نیت سره ، ددې دوارړو لمونځو (صلوة الحاجة او صلوة الاستخارة) په احادیثو کی وارد سوی دُعاوی دی هم ووایی، او بیا دی دعا وکړی چی الله تعالی دزندګی رفیق (ملګری) ورکړی ، دهغې دتکمیل اسباب پیدا کړی، دواده په مختلفو موقعو کی که ددعا وغیره اهتمام وسی نو انشآء الله دتاوان دفع کوونکی او فائده مند به وی .

## کوزده کول څنګه وی ؟

دکوزدې دپاره څه حاصل طریقه نسته ، دا صرف دهلک او جینکۍ دمشرانو په خپلو کی یوه معاهده ده ، که اولیآء (مشران) وغواړی نو دزبانی خبرو اترو یا خط او کتابت په ذریعه یا دیوه دوست وغیره

په ذریعه دی وکړی، کوزده کول یوقسم عهد او معاهده ده ، ددې چې تر کومه حده ممکنه وی انجام ته رسول پکار دی، ورنـه (کـه داسی ونسی) بد عهدی به وی چی په شریعت کی انتهائی ناخوښـه (عمل) دی .

## دواده تاریخ مقررول :

دکوزدې کولو وروسته ددواړو طرفو اولیـآء (مـشران) دی زبـانی دخط او کتابت په ذریعه یا دیوه سړی په ذریعه دنکاح تاریخ مقـرر کړی، په دې سلسله کی چی څومره غلط قسم رسومات رآئج دی هغه ټول واهیات او لغو (بې هوده ، فضوله) شیان دی، ددې څخـه حتی الامکان ځان ساتل پکار دی، ددې کوزدې وروسته چی کـوم تاریخ مقرر کړل سی، ددې مطابق درشته والی او دنـوررو (خلکـو) په موجودګی کی دی په انتهایی سادګی سره وکړی (وتړی) .

## دنکاح آداب :

دنکاح ډیر آداب دی ، په دې ټولو کی اهم ادب دادی چی په نکاح کی نیت ښه لری ، ددې دپاره چی که ددنیا په کار کی هم نیت ښه وی نوپردې بالدی ثواب تر لاسه کیږی ، بیا نکاح کول خو سـنت دی، نو څومره چی نیت ښه وی هغه رنګه ثواب رسیږی، بیاپه یوه

عمل کی ډیر نیتونه هم کیدی سی، اوپردې تمامو نیتـو جـلا جـلا ثواب هم رسیږی، په دې اعتبار سره نکـاح یـو عمـل دی، لـیکن څومره چی نیتونه کوی دومره ثواب زیاتیږی . په نکاح کی لانـدی درج نیتونه کیدی سی :

۱. نکاح دی ددې دپاره وکړل سی چی دحضورِ پـاک ﷺ سـنت ده ، چنانچه دحضورِ اکرم ﷺ ارشاد دی: اَلنِّكَاحُ مِنْ سُنَّتِيْ ، او دستو په نیت عمل کولو سره ثواب ورکول کیږی .

۲. په نکاح کولو سره دغلطو کارو (بدکاری) څخه حفاظت کیږی

۳. دنکاح کولو په وجه سره نفس پـه کنتـرول کـی وی، او دزړه خیالات ددلته او هلته غلط رَوِی (گمراهی) څخه او نظر دپراگنـده کیدو څخه حفاظت کیږی .

۴. حق تعالی ﷻ دنکاح په وجه سره (انسان ته) نیک اولاد ورکړی او هغه ښه کارونه کوی او دمور او پلار په حق کی دعا کوی ، نـو پر دې هم ثواب ورکول کیږی .

۵. دعیال داره انسان دعبادت ثواب به نسبت دواده نـه کـړی تـر عبادت زیات وی ، نو ددې ثواب دزیات تر لاسه کیـدو نیـت دی هم وکړی .

٦. دنکاح په وجه سره چې څومره اولاد کیږی هغه دحضور ﷺ په امت کی دزیاتوب سبب کیږی او حضور ﷺ په دې فخر کوی .

٧. الله تعالٰی به داسی اولاد عطآء کړی چې ددعوت الی الله محنت وکړی ، پردې سربیره به امت ته هم دینی نفع وی، او دمور او پلار دپاره به داجرِ عظیم سبب جوړیږی .

٨. که کوچنی بچیان مړه سی نو دمور او پلار دپارهِ دجهنم څخه دنجات ، اوجنت ته دداخلیدو سبب جوړیږی ، دغه رنګه په نکاح کی چې څومره نیتونه وکړل سی، هغومره ثواب وی، دینی او دنیوی برکتونه به ورته حاصلیږی .

بی فکره او سوچه نکاح کول یا صرف نفسانی خواهش او ددنیاوی لذتو پوره کولو دپاره دومره اهم کار (نکاح) کول ، دمومن او مسلمان کار نه دی، بلکه دابه محضی حیوانی مشغله وی .

١. دنکاح او واده یو لوی حکمت دلطف او سکون زندګی حاصلول دی، او دا حکمت په دې صورت کی ظاهر کیدی سی، چې دانسان ذهن هم ددې فآئدو وطرف ته متوجه وی، او دمحبت او الفت کومه ماده چې الله تعالٰی په هر انسان کی ایښی ده دابه کار راوړلو سره دزندګی تیرولو اراده وی .

۲. دنکاح دوهم اداب دادی چی علی الاعلان دی وسی ، چنانچه درسول الله ﷺ ارشاد دی: اَعْلِنُوْا النِّکَاحَ وَلَوْ بِالدُّفِّ ، یعنی اعلان دنکاح کوی اگرکه په نغاره وهلو سره وی. گویا په چپه او پټه نکاح نه ده پکار ، په زنا او نکاح کی دغه فرق وی چی زنا (چی حرامه ده) چپه او پټه کیږی ، او نکاح (چی حلاله ده) هغه دمجمعې (ډلی) په مخکی کیږی .

۳. دریم ادب دادی چی نکاح دی په مسجد کی وی، دغه رنگه دیوه لمانځه ورروسته دی وی، په خاص طور باندی دجمعې په ورځ یا دجمعې یا مازدیگر دلمانځه ورروسته ډیره زیاته افضله ده ، دغه رنگه دزمان او مکان دواړو برکتونه حاصل سی، په داسی مجلسِ نکاح کی دعلماوو او صلحاوو چی څومره مجمع وی هغومره ښه دی، چی دهغو دعا گانی هم شاملِ حال وی ، او رحمت او برکت نازل وی .

۴. نکاح دی په یو عالمِ دین یا نیک اوصالح سړی وتړی ، اول دې خطبه ووایی بیا دی ایجاب او قبول ور وکړی، په دې کی دی ددې خبری خیال وی چی ناکح دی دقبلولو پروخت پوره جُمله ووایی چی ما قبوله کړه ، صرف قبول ویل کافی نه دی .

۵. دنکاح ترلو وروسته دی دوستان او قریبان مبارکی ورکړی ، دهغې دپاره په حدیث کی دا دعا راغلی ده : بَارَكَ اللهُ فِيْكُمَا وَجَمَعَ بَيْنَكُمَا بِخَيْرٍ وَّ اَخْرَجَ مِنْكُمَا الطَّيِّبَ ، الله تعالی دی په تاسو دواړو کی برکت واچوی ، په خير او خوبی سره دی تاسی جمع کړی ، او نیک اولاد دی ستاسی څخه پیدا کړی .

٦. او دنکاح ترلو وروسته وچه خرما تقسیمول یا پاشل هم مستحب دی، البته ددې خیال دی وی چی په مسجد کی شور او شُغل او دهغه بی حرمتی ونسی .

۷. په نکاح کی (باید) ولور زیات نه وی، بلکه درمیانه درجه پکار دی، دغه رنګه دنکاح په نورو کارو کی (باید) فضول خرچی او اسراف نه وی، بلکه په اعتدال سره کار کول پکار دی. درسول الله ﷺ ارشاد دی: اَعْظَمُ النِّكَاحِ بَرَكَةً اَيْسَرُهُ مَؤُنَةً ، يعنی په نکاح کی چی څومره خرڅه کمه کیږی هغومره به برکت زيات وی، لهذا څومره کم شورش چی وی او خرڅ کم وی ، اوپه آسانی او سهولت سره (نکاح) انجام ته ورسیږی هغومره به انشآء الله برکت وی، دغه رنګه جینکی ته په سامان او اسباب ورکولو کی هم زیات تکلیف نه دی پکار، غور وکړی ، دحضرتِ فاطمې ؓ

سامان او اسباب څه وو ، دوه څادره (پړونی) یمنی (۱) چې یو قسم رنګین او لیکه داره طرز وو، دوې نیالۍ چې دالسی (یوه درخته ده. مترجم) دخورو څخه ډکې وی، او څلور ګړۍ ، دوه بازو بند دسپینو زرو ، او تکیه ، یوه کمبله ، یوه پیاله ، یوه میچنه (دوړو اخښلو آله) ، یوه مشکیزه او داوبو اېښولو لوښی یعنی منګی ، او په بعضو روایاتو کی یو پلنګ هم راغلی دی .

حضرتِ اقدس حکیم الامت مولانا اشرف علی تهانویؒ فرمایی چې جینکۍ ته په ورکولو سامان او اسباب کی ددرو شیانو لحاظ کول پکار دی:

۱. اختصار چې دګنجائش څخه دزیات فکر ونکړی .

۲. دضرورت لحاظ ، چې دکومو شیانو سم دستی ضرورت وی هغه ورکړی .

۳. اعلان دی نه وی، ولی دا خو دخپل اولاد سره صله رحمی کول دی، نوروته دښکاره کولو څه ضرورت دی، دحضور ﷺ دفعل څخه چې په روایت کی ذکر دی درې سره امره ثابت دی .



(۱). یمن دیوه ملك نوم دی چی دهغه ځای څادرونه مشهور وه . مترجم

## د رُخصتي اسلامي طريقه :

دواده کيدو وروسته بيا جينکۍ ددې دخاوند کره رسوېږ ، دې تـه رخصتي وايي، رخصتي هم په نهايتِ سادګی سره کول پکـار ده ، دجينکۍ کور والا که دخپل کور ديوې ښځي يا خادمی سـره ، يـا دهلک دخواخخه کـه ښـځي راغلـي وي نـو ددوی سـره نـاوکۍ واستوی .

حضور اکرم ﷺ خپله لور حضرتِ سيده فاطمة ؓ دامِّ ايمن ؓ سـره (چی دحضور ﷺ خادمه وه) دحضرتِ علی ؓ کره ليږلی وه .

درخصتي څه خاص طريقه په شريعت کی نسته ، نه دڅـه رسـم او رواج پابندی پکار ده، دغه رنګه دا هم ضروری نـه ده چـی کـوم سامان دمور او پلار دطرفه ورکړل سوی وی هغـه ورسـره وليـږی بلکه وروسته يې هم ليږلی سی .

## شبِ زفاف ( يعنی اوله شپه ) څنګه تيره کړی ؟

کله چی واده او رخصتي وسی ، او ناوکۍ خاونـد خپـل کـور تـه راوستله ، نو اوس يقيناً په دوی کی خلوت او تنهائی وی ، پـه دې سلسله کی دی څه آداب او اصول او څه خبری په ذهن کی وی :

۱ . زلمی او ناوی ته پکار دی چی د رخصتۍ څخه مخکی ورځ

دارنګه نکړی تیره چی بالکل ستړی سوی وی ، او دآرام هیڅ موقع نه وی ترلاسه سوی، بلکه په ورځ کی دی څه وخت وباسی ، څه وخت آرام کول پکار دی، ځکه چی ددواړو دملاقات په وخت به په طبیعت کی انبساط او شګفتګی او په بدن کی تازګی وی .

۲. که دانبساط اسباب په سهولت سره ترلاسه سی، نو انتظام کول پکار دی ، مثلاً میوه یا متهائی وغیره ، خوشبویی ، دکمرې (خونی) څه قدر زینت .

په بعضو ځایو کی (خلګ) په دې کی بالکل ډیره مبالغه کوی ، او دپلنګ په آرائش او زیبآئش په تیارولو او برابرولو کی په زرو روپی خرڅ کوی ، دا اسراف او فضول خرڅی ده ، ددې څخه ګناه کیږی ، فضول خرچی دشیطان عمل دی .

۳. که دمهرِ معجل (نقد مهر) رواج نه وی، نوبل څه شی دمهر څخه علاوه دهغې دمزاج په رعایت کولو سره هغې ته پیش کول پکار دی، ددې بغیر ددې څخه نفع (فآئده) اخیستل دمردانه غیرت او شرافت خلاف ده .

۴. په اولنی ملاقات دکلاه او خبرو څخه مخکی ( السّلام علیکم ورحمة الله ) پرتا باندی دی دالله تعالی سلامتیا او رحمتونه وی ،

ووایې او بیا دې دښځې (ناوکۍ) پر تندی او ددې پر ورېښتانو لاس

کښېږدي ، دا دعا دې ووایې:

اَللّٰهُمَّ اِنِّیْ اَسْئَلُكَ مِنْ خَیْرِهَا وَخَیْرِ مَا فِیْهَا وَخَیْرِ مَا جَبَلْتَهَا عَلَیْهِ

وَاَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا وَشَرِّ مَا فِیْهَا وَشَرِّ مَا جَبَلْتَهَا عَلَیْهِ

یا الله ﷻ زه ددې ښځې دخیر ښیګړې او دهغه خیر چې تا په دې

کې ایښی دی، اوپه کوم خیر چې تا پیدا کړیده ، ددې ټولو ستا

څخه سوال کوم ، ددې ښځې دشر څخه او کوم شر اوبدی چې تا

په دې کې ایښی ده ، اوپه کوم شر چې تا دا پیدا کړېده ، ددې

څخه ستا پناه غواړم .

۵. دا هم په آدابو کې دی چې اول اودس وکړی بیا دوه رکعته

صلوٰةِ حاجت وکړی دخیر او برکت دتوفق (موافقت ، مطابقت) او

محبت او پاکیزګۍ سره دوام او بقاء دصالح او لاد دحصول دعاء

دې هم وکړی .

بل دا چې دسلفِ صالحینو دغه عمل وو چې هغوبه دوه یا څلور

رکعته لمونځ وکړی، دالله تعالی څخه بې دعا هم غوښتله ، بیایې

دخپلې ناوکۍ په مخ کې چې، (پردې موقع ناوکۍ) په نهایت زیب او

زینت او جوړښت او سِنګار کولو سره راځي ، (سلفِ صالحینو به

دناوکی په مخ کی) ددنیا بی وقعتی اوبې ثباتی اودمال اودولت دبی قیمتی تذکره کوله، چی دمال محبت کم وی اودینی رُخ پیدا وی.
او بیا ورسره ورسره دخپل تعلق او محبت او دنکاح څخه مخ کی دهر رنګه بې ګانګی او دنکاح وروسته دبی تکلفه رشتې او تعلق تذکره او دمحبت خبری کوی .
ددې دي ضرور خیال وی، چی زلمی او ناوکی دواده څخه مخ کی اجنبی او بالکل نابلده وو ، په مینځ کی دهیڅ قسم څه تعلق نه وو، اوس چی دنکاح په ذریعه تعلق پیدا سو ، نوظاهره ده چی په یو وار سره پوره بلدیدی نسی، نه آزادانه (بې تکلّفه) مخ ته راتلای سی ، ددې دپاره په جماع او صحبت کی (چی ددې تعلق آخری کړی ده) تلوار هیڅ کله نه دی پکار ، بلکه څو شپې دی ددې سره فقط دانسیت اومحبت اوخوش طبعی خبری وی، بیاسوکه سوکه داخپل طرف ته مآئله اوخپل ځان ته قریبه کړی، اودصحبت اوجماع دپاره خو ټوله زندګی پرته ده ، که په دې (معامله) کی په انتهایی عجلت سره کار واخیستل سی نو دډیرو قسمو نقصانونو اندیښنه ده، لکه :
۱ . دښځی په ذهن کی به دا خبره پریوزی چی دنکاح مقصد فقط شهوت پوره کول دی نور هیڅ نسته .

۲. ظاهره ده چې ښځه فطرةً حيا داره وی، هغه دومره ژر دهمبستری (کوروالی) دپاره آماده کيدی نسی ، او که آماده يې هم کړه ، نو دهغې په خواهش کی ژر پورته کيده نه پيدا کيږی ، ددې دپاره (په جماع کی بيا) دسړی مخ کی په فارغه کيدو (انزاليدو) سره ددې خواهش نيمګړی پاته سی ، اودې ته به هيڅ لذت محسوس نسی.

۳. اول ځل دجماع کولو نه وجه سره پردۀ بکارت زائله کيږی ، او دبی تکلفی نه کيدو اوپه ښځه کی دخواهش نه پيدا کيدو دوجی ښځه دې ته دتکليف زيات احساس کيږی ، چی دهغې دپاره سوهانِ روح (ناچاره خطر) او دخاوند دطرف ښځه يې په زړه کی دکراهت (نفرت) پيدا کيدو سبب جوړيږی.

ښځه (ځان ته) درانژدی کولو اوهغه بلده کولو دپاره يوه خبره داهم په ذهن کی وساتی چی دنکاح وروسته يوه نوی دنيا مخ ته راځی، اوپه دې کی يو عجيبه او غريبه دلاوری او دل فريبی وی، پرداسی موقع باندی خپل ځان سنبالول ډير ضروری دی ، چی بالکل عاشقانه مجنونانه انداز ظاهر نکړی، ورنه هغه به تا خپل غلام او خادم ګڼی ، بيا (په خپل خاوند) خپله خبره منل، او خپلی مطالبې به

تسليمول شرع كوی، او نه دی ښـځه خپلـه محكومـه (مقبوضـه) دكور خادمه ګڼی چی تريو اوترش انداز اختيار كړی چی څنګه خبره كوی بيايې پرتندی ګونجی وی، اودا خيال يې وی چی زمارعب پر كښېنی ، په دې طرز رعب او وقار پيدا كيږی ؟ نه ! بلكه دښځی په زړه كی دخاوند خلاف دنفرت او حقارت جذبات پورتـه كيـږی ، ښځه دكور ملكه عفت جوړه سوی راځی، پـه فطـری طـور سـره محبوبه هم وی، او ستا رفيقه حيات هم، ستا په كورنی كـارو كـی معاونه او مددګاره ، ددې دپاره دمحبت او الفت هـم اظهـار وی، ورسره دخپل وقار او مقام هم خيال ساتل پكـار دی، ددې (طـرز) څخه په طبيعت كی شګفتګی پيدا كيږی ، او ستا دحاكم كيدو بـه هم لحاظ وی .

**يوه تنبيه** : بعضی خلګ شبِ زفاف (اوله شپه) دشبِ قدر برابر بـا عظمته او دقبوليت ددعا شپه ګڼی، بلكه تردې لاهم زياته ، دا خيال قطعًا غلط او بې اصل دی، په شريعت كی ددې هيڅ اصل نـسته دا رنګه بعضی دا ګڼی چی دمهـر روپـی بالكـل پـاكی دی، اودا هـم مشهوره ده چی دبيماری پر موقع باندی په دې سـره عـلاج كـول پكار دی، چی ژر شفا حاصله سی، نوپه دې كی هيڅ شـك نـسته

چی دمهر روپی دبنځی دپاره حلالی او پاکیزه دی، لکه څنګه چی په نورو حلالو طریقو سره لاس ته کړی مال وی، لیکن داچی په دې سره په علاج کولو سره ژر شفا حاصلیږی، چیری (په کتابوکی) لیکلی نه دی لیدل سوی.

## دجماع (مباشرت) آداب:

جماع (صحبت کول او هم بستر کیدل) دانسان هغه طبعی او اهم ضرورت دی چی دهغه بغیر دانسان په صحیح طور سره زندګی تیرول مشکل بلکه تقریبًا ناممکن ده، الله تعالی ددې خواهش دتکمیل جذبه (صرف) په انسانانو کی نه بلکه په تمامو حیوانانو کی هم ایښی ده.

لیکن شریعت دانسان ددې فطری خواهش دتکمیل دپاره څه آداب او طریقې ایښی دی، چی په انسان او حیوان کی څه فرق وسی، که دجماع مقصد دشهوت تکمیل وګرځول سی، نوپه انسان او حیوان کی فرق څه وسو؟

ددې دپاره ددې آدابو رعایت دشرعی حق کیدو سره سره انسانی حق هم دی، بیا شریعةِ مطهره جماع ته دانسانی حق سره شرعی حق هم ورکړیدی، ددې دپاره یې پر دې باندی ډیر څه فضیلتونه

هم بیان کړیدی، چی یو مسلمان ته په دې فعل کی هم ثواب ورسیږی :

چنانچه حضور ﷺ ارشاد وفرمایي: دخپلی ښځی سره جماع کول هم صدقه ده، او پردې ثواب (انسان ته) رسیږی، صحابه کرامو عرض وکړو، یارسول الله ﷺ ! یو سړی دخپلی ښځی څخه نفسانی خواهش پوره کوی په دې کی هم ثواب تر لاسه کیږی.

همدارنګه نبی ﷺ ارشاد وفرمایي: که چیری هغه خپل (نفسانی) خواهش یو غلط ځای پوره کوی، نوپر دې ګناه کیده که نه ؟ صحابه کرامو عرض وکی، ضرور! وې فرمایل چی که دګناه څخه دځان ساتلو دپاره حلال ځای دا مصرف کړل سی نو ضرور ثواب تر لاسه کیږی، اندازه وکړی دخدای پاک څومره رحمتونه دی، پرخپل منونکو باندی.

اوس زه دجماع څه آداب بیانوم :

۱. دجماع یو ادب دادی چی اول (خپله) ښځه په الفت او محبت او بوس او کنار سره مآئله کړل سی، اوداسی صورت باید اختیار کړل سی چی هغه هم جماع ته آماده سی (۱).

(۱). دښځی دمآئله کیدو او دهغې دخواهش دپورته کیدو ډیر څه =

په فطری طور باندی دښځو (طبآئع) طبیعتونه مختلف وی، ددې دپاره خاوند لره ددې دطبیعت او فطرت داندازې مطابق اقدام کول پکار دی. که څه وخت ښځه دده دپاره په یوه وجه سره آماده نه وی، نو دا پردې (جماع) باندی باید مجبوره نکړل سی.

---

= صورتونه دی، چی دښځی دمزاج او احوال په اعتبار سره مختلف دی، مثلاً دالفت او محبت خبری کول، بوسه او کنار کول، بغل گیره کیدل وغیره وغیره. اطبآء (طبیبانو) لیکلی دی چی په ښځه کی جنسی خواهش دهغې تې کښېکښل، دغه رنگه دتیو سرونه سو که سو که مښښولو او څوښلو سره ډیر زیات او ډیر ژر پیدا کیږی.
دتیو څوښلو په وجه سره که په خوله کی شیدې راغلی نو دا دی تُف کړی، خاوند لره دخپلی ښځی شیدې خوړل حرامی دی، بلکه دبعضو علماوو په نزد نکاح هم ماتیږی، که څه هم زموږ په مذهب کی نکاح نه ماتیږی مگر حرامی ضرور دی. اطبآوو داهم لیکلی دی چی دښځی په بدن کی دشهوت مرکز په مختلفو اعضاوو کی وی، چی دهغو په لاس تیرولو او مښښولو سره دهغې شهوت پورته کیږی، دقرآئنو (ډول او طریقه، صورت، طرز) څخه ددې اندازه کیدی سی، پر هر حال ترڅو پوری چی په مکمل طور باندی ددې خواهش نسي پورته، چی دهغو اظهار په خپله په مختلفو حرکتو سره کوی (مثلاً خاوند ته نژدې ورتلل، په سترگو کی خُمار پیدا کیدل، دخاوند پربدن باندی لاس تیرول، هغه موچول، په تناویدو سره دخپل محاسن ښکاره کول، وغیره) تردې وخته پوری په جماع کی مشغوله نسی، سړی لره پکار ده چی له دې څخه مخکی خپل جذبات په واك کی وساتی، چی ددې یو صورت دادی چی دجماع کولو څخه مخکی ذهن دجماع وغیره او دهغه دلذت څخه بالکل خالی وساتی. محشی

۲. جماع په داسی وخت کی وکړل سی چی په هغه کـی دطبیعـت توازن درست وی، نه زیات دلوږی حالت وی، نه بالکل نس پـوره ډک وی، اونه دپاخانی تقاضا وی، نه دخوب غلبه وی، نه پر ذهن باندی دپریشانیو، بې چینیو، تشو پیښو هجوم وی.

۳. په جماع کی حتی الامکان پرده کیـدل پکـار دی، ددې دپـاره داسی مکان (ځای) پکار دی چی په هغه کی بل څوک نه وی، بلکه نادان کوچنی هم باید نه وی، (هو که کوچنی بیده وی جـلا خبـره ده) حتٰی چی دحیوانانو په موجودګی کی هم مناسبه نـه ده، دغـه رنګه که کلامِ پاک (قرآن شریف) یا دینی کتابونه وی نوپر هغو دی کپړه وغوړول سی، نیز دجماع په وخت کی لُوڅ کیدل ښه نه دی بلکه بقدرِ ضرورت فرض خلاصول پکار دی، او پرنـور بـدن دی کپړه وغیره واچوی.

۴. دجماع پر موقع باندی قبلې ته دی مخ نه وی، دا داحترامِ قبلـه خلاف دی.

۵. دجماع څخه بلکه له ملاقات څخه مخکی هم مناسبه ده چی پـه مسواک یا په منجن وغیره سره خُله صفا کړل سی.

خُله صفا کول هسی سنت او په فطرت کی داخل دی، مګر په دې

موقع باندی ددې زيات اهتمام ساتل پکار دی، چی په ابتدائی مراحلو کی دخُلې دبوی څخه يوبل ته اذيت ونه رسيږی، بلکه يو خوشبوداره شی هيل وغيره که په خوله کی واچول سی نو ښه به وی .

٦. دجماع کولو څخه مخکی مذکوره دُعا ويل په صحيح حديثو سره ثابته ده :

بِسْمِ اللهِ اَللّٰهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا .

دالله ﷻ په نامه سره دا عمل شروع کوم ، يا الله ﷻ موږ دشيطان څخه وساتی، او شيطان زموږ دهغه اولاد څخه ليری کړی کوم چی تا زموږ په نصيب کی ليکلی وی .

درسول الله ﷺ ارشاد دی، که په دې جماع حمل ودريږی ، دی کوچنی ته شيطان نقصان نسی رسولی، دا دُعا دفرضو خلاصولو څخه مخکی ويل پکار دی، که دستر دخلاصيدو وروسته په ياد سوه نوپه زړه کی دی وويل سی، په ژبه سره نه ، او دعا دواړو ته ويل پکار دی .

دشيطان دنقصان نه رسيدو په مطلب کی علماوو څو مطلبه ليکلی دی، مگر يو عمده مطلب بعضو علماوو دا بيان کړيدی ، چی ددې

کوچنی ایمان به محفوظـه وی، شـیطان دی دایمـان څخـه لیـری کولای نسی، الله اکبر ! دا څومره لوی دولت دی چی دیوې دعا په برکت سره دکوچنی ایمان محفوظه سی.

۷. عین دصحبت (جماع) په وخت کی خبری کول هم مناسب نـه دی ، نه په دې وخت کی دخپلی ښځی څخـه عـلاوه دیـوې بلـی (ښځی) سره دجماع کولو او لطف اخیستل کیدو خیال په ذهن کی پکار دی، کنی دابه هم دزنا مترادف وی ، البتـه کـه خاونـد لـره دسرعت انزال خطره وی نو دصحبت شـروع کیـدو وروسـته دی ذهن دې طرف ته نه ساتی نو (دا عمل) په ژر نه انزال کیدو کی بـه مفید وی، یعنی دجماع کولو په وخت په ذهن کی ددې خیـال نـه وی چی هغه جماع کوی ، څکه چی ژر انزال نسی .

۸. ښځی او خاوند لره دیو بل بدن ته کتل جـائز دی، هـیڅ گنـاه نسته ، مگر بلا ضرورته ښه نه دی ، حضرت عائشه صدیقه رض بیان کوی چی نه ما درسول الله ﷺ ستر لیدلی ، اونه ده ﷺ زما سـتر په ټوله زندگی کی لیدلی دی .

۹. دجماع یو اهم ادب داهم دی چی تر څو دواړو لره فراغـت او اطمینان نه وسی نو یو دبل څخه دی جلا کیږی نه ، دښځی دفارغه

کیدو ښځه مخکې لیری کیده دصحت په اعتبـار هـم مـضر دی ،
دفراغت یوه علامه داده چې دښځې هغه ګرفت چـې دشـهوت پـه
حالت کې وو هغه ختم سی په بدن کې یې سستی راسی .
عام طور داسی کیږی چې سړی ژر فارغـه کـیږی ، او ښـځې تـه
فراغت نه کیږی ، چې دهغه وجه داده چې ښـځه پـه فطـری طـور
باندی مرطوب طبیعته ده ، او ددې اعضآءِ جنسی پـټ وی ، ددې
دوجې ددې په انزال کې ځنډ لګیږی ، او نارینه ګرم طبیعت او دده
اعضآء ظاهر او دباندی دی ، ځکه هغه ژر فارغه کیږی .
پرهر حال چې څنګه خاوند فارغه سی دغه رنګه دښځې تـر فارغـه
کیدو پوری دی پر دغه حالـت بانـدی بـر قـراره وی ، او ددواړو
دسـکون او فراغـت مهمـه علامـه داده چـې ورروسـته دواړو لـره
داطمینان خوب ورسی ، که دښځې سیرابی نه وی سوی ، اوپه دې
حال کې نارینه جلا سی نو دښځې په زړه کې به دتسکین نه کیدو په
وجه سره دمحبت پر ځای نفرت پیدا کیږی ، او که هـر وار دغـه
قصه جاری وه نو خطره ده چې هغه دخپل خواهش دتکمیـل دپـاره
یوه بله لار تلاش نکړی .
۱۰ . یوه نهایتی بده او قبیحه او ناوړه خبره چې دهغې لیکل هم زړه

نه غواړی لیکن په فیشن پرستو کی هغه شروع سویده ، ددې دپاره ددې دقباحت او بدوالی بیانول ضروری دی ، هغه دا ده چی نارینه خپل مخصوص اندام دښځی په خُله کی ورکوی، او ښځه دا په خُله کی څوښی ، دا نهایتی قبیح اومنکر (غیلظ ، مردار) فعل دی ، په شریعت کی ددې (مردار فعل) هیڅ ګنجآئش نسته ، دغه رنګه نارینه دښځی شرمګاه په خُله کی نیول، او څټل دی ، دا هم دارنګه نهایتی ګنده ( او مردار) فعل دی، یو شریف نارینه یا ښځه ددې (مردار جُرم) ارتکاب نسی کولای، نه په اسلام کی (بلکه په انسانیت کی) ددې (خبیث) فعل ګنجآئش سته ، نه انسانیت اجازه ورکوی، دښکاره حیوانیت او نوی تعلیم او تی وی (دیورپ او مغرب تقلید، په معاشره کی دسکسی فلمانو په عام کیدلو سره) دا قسم حرکتونه زیږول دی ، ددې څخه ساتل پکار دی ، (په طبی لحاظ سره هم ددې خبیث حرکت څخه قسم قسم بیماری پیښیږی).

دجماع څخه دفراغته ورروسته دواړو ته خپل جنسی اعضآء په جلا کپړی سره صفا کول پکار دی، بلکه په حدیث شریف کی راځی چی استنجآء دی ووهی ، دا اعضآء دی پریولی اودس دی وکړی ،

بیده دی سی .

په دې سره پاکیزګی هم حاصلیږی او دوهم وار په جماع کولو کی نشاط پیدا کیږی ، که اودس ونکړی نو کم از کم تیمیم دی وکړی چی په څه درجی کی پاکی حاصله سی .

۱۱. دفارغه کیدو وروسته چی تر څو بدن ګرم وی یخه هوا خوړل نه ده پکار ، دغسی سم دستي یعنی اوبه وغیره هم استعمالول دصحت دپاره مضر دی، البته دیو معمولی مقوی شی په خوړلو کی حرج نسته .

۱۲. بیاکه دوهم ځل دجماع کولو اراده وی نو ترڅو چی رشیتینی خواهش پیدا نه وی، جماع کول دصحت دپاره نقصان رسوونکی ده ، (البته شرعًا یې پر جواز هیڅ کلام نسته) ، دریشتینی خواهش علامه داده چی اعضاءِ شهوت ته دحرکت ورکولو بغیر ، دغه رنګه ذهن دصحبت طرف ته دمنتقل کولو بغیر شهوت پیدا وی، نو پوه سه چی ریشتینی وی، ورنه که داسی نه وی نو بیا نه دی .

۱۳. جماع دی صرف دخواهش پوره کولو په نیت او اراده سره نه وی، بلکه په ښه نیت سره دی وکړل سی، مثلاً نفس او نګاه (نظر) دپراګنده کیدو څخه ساتل، دخپل ښځی حق ادا کول، دنیک او

صالح اولاد اوچی داعی الی الله جوړ سی د وغیره اُمورو نیت دی وسی ، نو دلطف او لذت سره سره به ثواب هم ترلاسه سی، بلکه په حدیث پاک کی دصدقې کولو دثواب درسیدو زیری تر لاسه کیږی .

۱۴. ددوهم ځل جماع کولو څخه مخکی دی اسباب دنشاط استعمال کړی او خپله ښځه دی په الفت اومحبت سره پوره تیاره کړی .

۱۵. دا خبره دی هم په ذهن کی ناسته وی چی په حیض او نفاس یعنی دښځی دناپاکی په حالت کی صحبت کول بالکل حرام دی، دحیض (میاشتنی مریضی) کم څخه کم مدت درې ورځی دری شپی اوزیاته موده یې لس ورځی لس شپې ، دنفاس (دکوچنی پیدا کیدو وروسته مریضی) کمه مدت مقرر نه دی، او زیات مدت یې څلویښت ورځی او څلویښت شپې دی، ددې زیات تفصیل په ( هدیة النسآء ) کی تر لاسه کیږی .

۱۶. خاوند او ښځه دی دشپې دتنهایی خبری دوستانو او یارانو او دخوندکیانو په مخ کی هیڅ کله هم بیان نکړی، دا دسختی گناه خبره ده ، په حدیث پاک کی رسول الله ﷺ فرمایلی دی چی

دنورو ومخ ته دارنګه خبری کول ګواکی ددې په مخ کی دغه کار کوی ، چی دانتهایی بی حیایی اوبی شرمی علامه ده .

## دجماع مُدّت :

دیو وار جماع کولو وروسته بیا کله جماع کول پکار ده ، پـه دې کی په قطعی طور باندی هیڅ مـدت نـسی بیـان کیـدی، دخلګـو دحالاتو او مزاج په اعتبار سره مدت مختلف کیدی سـی ، اطبـآء (طبیبان) لیکی چی په یوه میاشت کی یو وار دا اختیار کـړی ، کـه زیاته تقاضا وی نو دوه ځله که پردې هم اطمینان نه وی نوبیاپه هفته کی یوځل ، کنایةً دحدیث څخه هم معلومیږی مثلاً په حدیث کـی دجمعې په شپه کی دجماع غسل وغیره کولو څخه وروسته دجمعې دلمانځه کولو ترغیب ورکړل سویدی .

دپاره ددې چی دجمعې لمونځ ته په تلو راتلو کې چیری نظر پرېوزی نو چی په طبیعت کی څه قسم پراګنـدګی پیـدا نـسی ، او دنفـس دخواهش څخه داطمینان کیدلو په سبب په لمانځه او خطبه کی دل جمعی حاصله سی . پرهر حال که چیری تقاضا ددې څخه هم زیاته وی نو په هفته کی دوه ځله دی وکړل سی، باقی په هره شپه کی بار بار جماع کول دصحت دپاره ډیر زیات مضر دی، خـاص پـه دې

دور کی چی طاقتونه بالکل کمزوری سویدی او خوراکونه خالص پاته نه دی، بار بار جماع کول دانسان ځوانی ډیر ژر ختموی، ولی چی په جماع کولو سره دمنی ډیر مقدار خارجیږی ، اودمنی په تیاریدلو کی دبنه خوراک ډیره حصه صرف کیږی، نو دا شان دبنه خوراک یو ډیر لوی مقدار په یوځل جماع کولو سره ختم سو، چی دهغې په وجه سره به پرصحت باندی ډیر ژر اثر پرېوزی ، او سړی هم دمختلفو بیماریو ښکار سی چی په هغو کی اهمه بیماری دسرعتِ انزال ده، او سړی چی کله دسرعتِ انزال په مرض کی مبتلا سی نو دجماع په لذت او لطف کی به کمی راسی، او دښځی تسکین به نسی کولی، نوپه خپلو کی به نالکی شروع سی.

بل دانزال په کثرت سره مادهٔ منویهٔ کمزوری او نری کیږی چی دهغې اثر به پر اولاد باندی هم پریوزی ، ځکه چی کمزوری او ضعیف الخلقة به وی ، بل دبار بار جماع کولو دا نقصان هم دی چی دښځې به نفسانسی خواهش نه کیږی نو دابه پرخپل ځان باندی وبال ګنی ، او داهم دتعلقاتو دپاره نقصانی خبره ده ، او ددې سره سره لوی نقصان دا دی چی اګرچی په فطری طور سره حیا داره وی او دنفسانی خواهش دپوره کولو په معامله کی په لږه باندی قناعت

کوونکی وی ، او یوځل تسکین داره جماع کول دثابتی میاشتی دپاره کافی کیدی سی، لیکن که چیری په زیات چیر چاړ سره را پورته کړل سی او دهغې طبیعت دغه رنګه شهوانی سی ، او هر وخت دهغې په دماغ کی دغه خیالات پخیدل شروع سی، نو ددې وروسته به دشهوت نشه پردې باندی سپره سی، او دابه ددی عادت سی ، نتیجه به یې داسی چی لړ موده وروسته به ته عاجزه سی ، او ستا مجبوریانی به ظاهره وی چی سترِی یې آرام کول غواړی ، او هغه به دی په بیدارولو باندی مجبوره کوی .

داصرف ستا په خپل انجام نظر نه کولو او دبی واکه کیدلو نتیجه ده بیا ددې انجام دذلت او رسوایی او ډاکټرانو اوحکیمانو ته دچکر لګولو څخه ما سوا هیڅ هم نه وی ، مګر مخ کی والا خبره بیا هم پیدا کیدی نسی نو دتفریق (جلا والی) هم خطره ده ، او که چیری په دې مابینځ کی یو خبیث په غلطه لاره بیوونکی ورته ملاؤ سو نو پر دې لار باندی ښوونیدل څه لیری نه ده ، ددې دپاره په ډیر سوچ او فکر سره ددې قیمت دولت او لذت څخه نفع اخیستل پکار دی دپاره ددې چی صحت قوت او ځوانی بر قراره وی، او لطف دائمی وی ، او اولاد هم تندرست او سالم پیدا سی .

## جماع کم وخت کول پکار ده :

دجماع دپاره دورځی په نسبت دشپې وخت زیات ښه دی ، او داسلامی میاشتو په اعتبار سره دړومبۍ او پنځلسمی او آخری شپې څخه علاوه په باقی شپو کی دا فعل کول پکار دی ولی چی درواياتو څخه معلومیږی چی په دې درو شپو کی شیطانان زیات خپریږی، او دهفتې په اعتبار سره دجُمعې په شپه کی بعضی فقهاوو جماع مستحب لیکلی ده ، او په شپه کی هم دشروع حصې په نسبت دشپې آخری حصه زیاته مناسبه ده ، چی دشپې په ابتدآئی حصو کی دی خوب وکړل سی، دپاره ددې چی دټولی ورځی دستومانی څخه ورته راحت او مکمل سکون حاصل سی، او یوه فآئده یې دا هم ده چی دشپې لږ حصه به په ناپاکی (جنابت) کی تیره سی ، البته دشپې دومره آخره حصه دی هم نه وی چی بیا ورته ددوباره آرام وخت پاته نسی ، څه ساعت ددې څخه وروسته هم آرام کول پکار دی .

شریعتِ مطهره دخپل ښځی دپوره بدن څخه دهر قسم نفع اخیستلو اجازت ورکړیدی ، البته دلواطت یعنی په وروسته ځای کی صحبت کول دخپلی ښځی سره هم حرام دی . ځکه چی هغه بالکل دجماع محل اوځای نه دی ، نو صحبت صرف په مخکنی حصه کی جآئز

دی ([1])، او ددې مخکنۍ حصې دپاره چې کومې طریقه اختیار هم کړل سی په شریعت کې دهغې ممانعت نسته ، البته اشارةً دوې طریقې ښه او عمده معلومیږی :

۱. اوله طریقه چې په هر جانداره کې فطری طریقه ده هغه دا چې سړی دې پورته وی اوښځه دې لاندې وی، په دې کې یوه فائده دا هم ده چې سړی ته به دحرکت کولو پوره موقع تر لاسه وی، چې ددې سره به لذت ورته زیات حاصلیږی ، دوهمه فائده یې دا ده چې پر ښځه باندې به لږ وزن راځي ، چې ددې په وجه سره به دهغې په لذت کې اضافه وسی ، او هغې ته به هم ژر فراغت وسی ، بلکه دا چې دا طریقه به داستقرارِ حمل دپاره هم مددګاره وی ([2])

---

([1]). ولې چې یومردار ګنده اوپلیت ځای دی، بعضې خلک ددې خبیث فعل دلداره وی، داسې خلګو ته په بې عقلۍ کې خر اوپه بې شرمۍ کې خنزیر عاجزه دی ، دا هغه مردار جُرم دی چې دلوط ﷺ قوم الله پاك ﷻ ددې په وجه سره دصفحهٔ هستۍ څخه نیست اونابود کی، پر هر حال دا دیو شریفه انسان کار نه دی . مترجم

([2]). خاص دصحبت په باره کې دیوه ډاکټر مختصر مګرجامع مضمون تر نظر تیر سو ، لهٰذا دا وړاندې کول مناسب معلومیږی :

په جماع کې دی ښځه نیغه (ستونی ستغ) پرېوزی او لاندې دی وی ، او خپلې پښې دې بې غزولې وی، اوسړی دی ددې دپاسه دارنګه پرېوزی چې دواړه خاص اندامونه یودبل مقابل سی. بیا سړی جماع =

اشارةً دا طريقه په قرآن کريم کې ذکر ده لکه چې ارشـاد دی: فَلَمَّا تَغَشَّاهَا حَمَلَتْ حَمْلاً خَفِيْفًا ، يعنې کله چې سړی پر ښځه بانـدې را خپور سو هغې سپک غوندې حمل واخيستی .

ددې صورت دا دی چې ښځه نيغه پرېوزي او سړی پر دې سـربيره اړولې پرېوزي ، چې دښځې دهر اندام په مقابل کې دسـړی انـدام راسي. ۲. دوهمه طريقه : چې دکومې متعلق په حـديث پـاک کـې ارشاد دی: اِذَا قَعَدَ بَيْنَ شُعْبِهَا الْاَرْبَعِ ثُمَّ جَهَدَهَا . يعنې کله چـې

---

= کوی دقدرت دمنشاء مطابق حرکت کول شروع کوی ، نوپه دې فعل کې نور لذت تر لاسه کوی ، بيا هغه منزل ته راځي چې دسړی دخاص اندام څخه منی خارجه سی دښځې تر رحم پوری رسيږی ، ددې سره سم دښځې ټول بدن سست سی ، او دسړی دخاص اندام ټوليدل شروع کيږی، که دښځې تر ملا لاندې سپك بالښت کښېښول سی نوپه لذت اومزه حاصل کيدو اودحمل دريدو دپاره فائده مند دی دا خبره هم ياد ساتل پکار دی چې ښځې ته ( دطبيبانو په وينا ) په هره مباشته کې يو يا دوه ځلې بعضو ته دحيض څخه مخ کې ، او بعضو ته دحيض څخه وروسته دشهوت يوخاص جوش (شوق) را پورته کيږی، په دې وخت کې هغه دصحبت دپاره بيتابه وی مگر دفطری حيا په سبب په ژبه سره دخه ويلو پرځای په اطوارو او انداز سره اظهار کوی، سړی ته پکار دی چې دداسې وخت دپيژندلو کوشش وکړی ، په دې وخت کې دی خواهش ضرور پوره کړی، ددې څخه محبت زياتيږی او لطف هم ښه راځي . محشی

سړی دفرج دځلورو واړو طرفونو په مینځ کی کښېنی بیا په مشقت کی واچوی ښځه .

دشعب اربع څخه څه مراد دی ؟ په دې کی راجح قول دادی چی دښځی دوه لمونه (کوناټی) او دوه ورنونه مراد دی ، او ددې په مینځ کی کښېنستل به هغه وخت وی کله چی ښځه پرته وی او دهغې پښې پورته کړی او جماع وکړی . دا طریقه دحمل دریدلو دپاره هم فائده منده ده ، ځکه درحم تیلۍ (کځوړه) دباندی طرف ته دذکر بالمقابل راځی .

**تنبیه** : ۱. که چیری واده دپېغلی ښځی سره وی نوپه اول ځل صحبت کولو کی دهغې دپردهٔ بکارت په چاودلو سره هغې ته تکلیف رسیږی ، په داسی وخت کی دنرمۍ معامله کول پکار ده ، حرکت کم کول پکار دی .

۲. که واده دپیغلی سره وی او پردهٔ بکارت معلومه نه وی نوکه دښځی اخلاق ښه وی اوپه بدی کی دمبتلا کیدو آثارنه وی نوصرف ددې پردې دنه موجود والی څخه دی پرهغې باندی بد گمانی نه کوی، ځکه چی فقهآور لیکلی دی او اطبآء هم وایی چی بعضی وخت دټوپ وهلو څخه یا چیری دغورځیدلو څخه ، دغه ډول

دکثرتِ حیض څخه ، او تر ډیر وخته پوری دواده نه کیدو څخه هم پرده بکارت ختم کیږی .

## دجنابت دغسل بیان :

سړی چی په شپه کی جماع کړی وی نو دسهار کیدو سره دسهار دلمانځه څخه مخکی غسل کول پکار دی، دی غسل ته غسلِ جنابت وایی .

دجنابتِ غسل په ډیر اهتمام سره کول پکار دی خاصکر ښځی او خاوند ته دخپلو جنسی اندامونو په ډول دپریولو خیال ساتل پکار دی ، سړی دی خپل اندام په ښه ډول سره پریولی خاص دسنت سوی ځای په پوست کی رطوبت جمع کیږی هغه دی صفا کړی ، ځکه دپوست دبیماریو دپیدا کیدو اندیښنه ده ، دغه رنګه ښځه دی دخپل پټ اندام صفائی وکړی ، دغسل څخه مخ کی متیازی کول پکار دی ، دپاره ددې که چیری دمنی څه حصه حصاره سوی وی نو خاربه به سی دجنابت دغسل طریقه دا ده چی اول دبدن په کومه حصه باندی چی ناپاکی لګیدلی وی هغه دی ووینځی بیا دی اودس وکړی، بیا دې پر ټول بدن باندی په ښه ډول اوبه اوبیوی ، په غسل کی درې فرضه دی : ۱ . په خوله اوبه ګرځول . ۲. په پزه کی

اوبه اچول ۳. پر تول بدن اوبه بيول ([1]) .

**تنبيه** : دجنابت دغسل كولو بغير په كور كى پروت اوسيدل دبې بركتۍ اونحوست سبب دى، په دې غسل كى شرم او حياء كول نه ده پكار ، درسول الله ﷺ ارشاد دى چى دجنابت په حالت كى پروت اوسيدلو سره درحمت فرشتى كور ته نه راځى .

مراد دا دى چى دسستۍ او ناراستۍ په وجه پروت اوسى چى دهغې په وجه سره ترې لمونځونه هم قضا سى ، هو! فقط دشپې په لږ حصه كى دجنابت په حالت كى بيده كيدل مراد نه دى .

**تنبيه** : ياد ساتل پكار دى چى څنګه په جماع كولو سره غسل فرض كيږى دغه ډول په احتلام (په خوب ليدلو سره دمنى انزال كيدل) وويني ، په خوب كى دمنى په وتلو سره غسل فرض كيږى، دغه ډول كه په بيدارى كى دشهوت سره انزال وسى يا دښځې

---

[1]. پر تول بدن اوبه بيول چى دبدن يو وريښته ، او دوريښته مقدار په بدن كى يوځاى هم خشك نسى پاته، دغه ډول دنو (ناف) آخر ته اوبه رسول ، دږيرى لانديني پوست ته اوبه رسول ، دسر دوريښتانو پوست ته ، او ګوتمۍ كه تنګه وى ، دغوږو سروياتو ته چى بند سوى نه وى، دناسنت سوى دخاص اندام دننه پوست ته اوبه رسول فرض دى . (ماخوذ ازعامة الكتب) . مترجم

دلاس وروړلو څخه یا په ښکلولو کی شهوت څرګند سی او انـزال وسی نو هم غسل فرض کیږی ، ښځی ته ددې قسم شـکایت کـم کیږی ، دجماع په صورت کی چی دسړی دسپاری حصه دښځی په فرج کی داخله سی نو غسل به ورباندی فرض سی ، هو! که چیری یوه ښځه ډیره کمزوری وی او بغیر ددخول څخه دهغې انزال وسی نوپه دې باندی به هم غسل فرض کیږی .

## دزنا بیان :

څرنګه چی اوس دنکاح فضآئل او ددې آداب بیان سوه دغـه شـان دنکاح ضد یعنی دزنا متعلق څه خبری بیانوو دپاره ددې چـی ددې بد والی او عیبونه مخ ته راسی ، زنا دیوې اجنبی ښځی سره په غلطه طریقې سره خواهش پوره کول نهایتی قبیح، ناکـاره او بـدکار دی ددې شمیر په ګناهِ کبیره کې کیږی، په قرآن کریم او حدیثِ پـاک دواړو کی، ددې بد والی بیان کړل سویدی، په زناکولوسره انسان په دنیا کی هم ذلیل او خوار کیږی ، او په مخلفو وباګانو او آفتونو کی مبتلی .

که چیری اسلامی حکومت نافذ وی نو ناواده کړی ته سـل دُرې او واده کړی سنګسارول کیږی، اوهغه هم په مجمعِ عام کی (دخلګو

په مخ کی) ، دپاره ددې چی خلګ ورڅخه عبرت واخلی .
څرنګه چی زنا کول حرامه ده ، دغه ډول لواطت (یعنی دهلکانو یا
ښځو سره بدفعلی کول) دا دزنا څخه هم زیات خراب کار اوګنده
(مردار او حرام) عمل دی، ددې خراب کار په وجه سره دحضرت
لوط علیه السلام پرقوم باندی هم عذاب راغلی چې دهغو تذکره په قرآن
کریم کی بار بار په مختلف انداز سره سویده ، او ددې شرعی سزا
دنورو امامانو په نزد خو دزنا سزا ده ، خو دحنفی عالمانو په نزد
دمسلمانانو بادشاه ته اختیار دی ، که دغوره یا بل اوچت ځای څخه
یې په را غورځولو سره هلاکوی یاورلره کمه بله سخته سزا ورکوی
غرض داچی په دې بد (مردار او حرام) کار باندی په حدیث کی
سخت لعنت وارد سویدی .

## دولیمی بیان :

درخصتی څخه وروسته کله چی یوشپه په خلوت کی تیره سوه نو
دولیمی دعوت کول سنت دی ، اوپه دې کی دخپل حیثیت مطابق
خرڅ کول پکار دی، که خدای پاک جل جلاله دولت ورکړی وی نو
دخپلوانو دوستانو او احبابو او صالحانو او عالمانو یو وخت دعوت
دی وکړل سی ، اوکه مالی حالت یې کمزوری وی نوچی هرڅه

دال ډوډۍ میسّر وي په هغه کې دې څه خلک شریک کړل سي ،
لیکن په قرض اخیستلو سره ددعوت کولو ضرورت نسته ، رسول
الله ﷺ یوه ولیمه داسې کړیده چې دسترخوان یې وغوړوی او
صحابه کرامو ﷺ ته یې وفرمایل چې دچا سره څه خوراک موجود
وي هغه دې راوړي دهغه وروسته یې ټوله خوراک یو ځای کړ او
صحابه کرام ﷺ یې په طعام کې شریک کړل ، ددې څخه زیاته په
اسلام کې څه ساده ګي کیدی سي، البته ددې خبرې پوره لحاظ دی
وساتل سي چې صِرف مالدارو ته دې دعوت نه ورکوی بلکه
دغریبانو او صالحانو زیات حق دی .
داسې ډوډۍ ته شَرُّ الطَّعَامِ فرمایلي سوی دی په کومه کې چې صِرف
مالداران رابلل سوی وي او غریبانو ته دې په دې کې څه نه ورکول
کیږي ، لهٰذا په دعوت کې دې ټول شریک کړل سي .
<u>یادونه</u> : یوه خبره دا هم یاد ساتل پکار ده چې که چیرې په څه وجه
سره دواده موقع نه وي، یاښځه وي خو دصحبت موقع او ګنجائش
په هیڅ یوې وجهې سره نه وي نوپه داسې موقع کې دخپل عصمت
او پاکدامنۍ دحفاظت دپاره شریعتِ مطهره په کثرت سره روژې
نیول ښوولي دي ، په دې سره به یې نظر کښته وي او پاکدامنی به

ورته حاصله وی.

## دخاوند او ښځی حقوق پر یوبل باندی :

دنکاح څخه وروسته دښځی او خاوند حقوق پریو بل باندی لازمیږی، ددې دپاره هریوه ته دخپلی ذمی دحق اداء کولو فکر کول پکار دی، په دې صورت کی به دحقوقو اداء والی کیږی اوپه تعلقاتو کی به مضبوطتیا پیدا سی :

۱. یو اهم حق کوم چی ددواړو سره تعلق لری هغه دا دی چی دیو اوبل دطبیعت او خواهش پوره لحاظ دی وساتل سی ، مثلاً بعضی طبیعتونه انتهآئی شهوتی وی ، ددې قسم طبیعت لرونکی ته بار بار ددې (شهوت) دپوره کولو تقاضا پیدا کیږی ، او بعضی طبیعتونه ډیر کمزوری شهوت والا وی دهغو دی طرفته میلان کم وی ، اوس که چیری ددواړو طبیعتونه برابر او یو رنګه وی نو بیا خو څه خبره نسته ، لیکن ډیر څله داسی هم کیږی چی دیوه خواهش ډیر زیات وی او دبل خواهش ډیر کم وی ، که چیری دسړی ډیر خواهش کیږی نو هغه ته دخپل طبیعت کنترول کول پکار دی او دښځی دطبیعت په خیال ساتلو سره ورته کله کله قصد کول پکار دی ، اوکه چیری سړی دکمزوری طبیعت والا وی نو دښځی

دخواهش دتکمیل دپاره هغه ته مقویات استعمالول پکار دی، داسی دی نه وی چی سړی دخپل طبیعت په بنآء باندی په صحبت کی ډیر کمی وکړی او ښځه دده په انتظار کی اوسی، په دې کی هم ډیر نقصانات دی .

په مقویاتو کی دټولو څخه ښه شی عمده خوراک ، دوړو حیواناتو، مرغانو غوښه ، نیم پوخته هگۍ ، ماهی او مغزیات بادام ، جنغوزې وغیره دی، پرهرحال ددواړوپه اعتدال سره به ژوند خوشگوار وی.

۲. دحیض او نفاس (یعنی ناپاکۍ په حالت کی) دښځی سره صحبت کول حرام اونا جآئز دی، بلکه په داسی وختوکی دنامه څخه واخله تر زنگنو پوری ځای بالکل ښکاره کول نه دی پکار ، ددې څخه علاوه دباقی بدن څخه لطف اخیستل او یو ځای بیده کیدل جآئز دی، خوپه دې شرط چی په صحبت کی دواقع کیدلوخطره نه وی، دناپاکۍ په زمانه کی هم ښځی ته دخپلی مینی او محبت دکموالی احساس مه ورکوی، البته دجماع څخه پوره پوره ځان ساتی ، بې بې صرف دخواهش پوره کولو دپاره یا داولاد دحاصلولو دپاره نه ده، بلکه یو لوی حکمت پکښی دزړه الفت اومحبت دی، ځی تولو ستومانی ورسره لیری سی او زړه باغ باغ سی چی یو بل ځای بالکل

حاصلیدای نسی .

## پر سړی باندی دښځی حقوق :

خاوند چی کله نکاح وکړی او خپله بی بی کورته راولی نو دهغې حفاظت او دهغې دحقوقو خیال ساتل ډیر ضروری دی، شریعت دذمه واری په طور باندی دښځی درې حقوق پر سړی باندی لازم کړیدی ، چی دهغو بیان دشرعی حقوقو تر عنوان لاندی کول کیږی .

## شرعی حقوق :

۱. نان او نفقه یعنی دخوراک چیښاک خرڅ ۲. لباس یعنی دبی بی دجامو وغیره خرڅ ۳. مسکن یعنی داوسیدو مکان (ځای)، په اولو دوو حقونو کی خاوند لره دخپل حیثیت مطابق انتظام کول ضروری دی، ګواکی دښځی دخوراک او جامې پوره ذمه واری پر سړی باندی اچول سویده ، دی به په خپله هم خوری او په بی بی باندی به بې هم خوری په خپله به بې هم اغوندی اوبی بی ته به یې هم ور اغوندی، ښځی ته ددې (دوو شیانو) دپاره دګټی وټی کولو ضرورت نسته ، اونه ښځه دګټی وټی کولو دپاره پیدا کړل سویده، په دې دواړو حقوقو کی خاوندته دبی بی درزق رعایت کول پکار دی

په دې شرط چې دشريعت منافي (ضد) نه وي،

دريم شي مكان دى، ددې انتظام هم دخاوند په ذمه ضـروري دى، كه چيرى په كور كې ډير كسان اوسيدونكي وي او مور او پلار هم وي نو يو داسې كمره (خونه) ضرور پكار ده چې په هغه كـې دوى دواړه دتنهايي په وخت كې په بې تكلفۍ سره ملاويدى سي، چې په كور كې ډير كسان اوسيږي نو ښـځې تـه دنـامحرمو خپلوانـو پـه وړاندې تلل راتلل بد دي (يعني ناجآئز دي) لږ تر لږه په هر يوه كور كې مردانه اوزنانه حصه جلا جلا ساتل پكاردي، دمسآئلو اوپه خپل مينځ كې دحقوقو دزيات تفصيل دپاره په اُردو كتـابو كـې بهـشتي زيور ، بهشتي ثمر، هداية النسآء ، تحفة الوالد او نور مطالعه كول پكار دي، ما ددې رسالې دمختصري ساتلو دپاره ضـروري خبـرى بيان كړى او تفصلات مې پريښوول .

## اخلاقي حقوق :

سړيو ته الله تعالى ډير داسې خصوصيات ورنصيب كړيدى كم چـې په ښځو كې عمومًا كم مونډل كيږي، شجاعت او بهادري، عـزت او حميت، حلم او مروّت او دغسې حاكميت او آمديت، دفيصلې قوت، رعب او دبدبه داپه سړي كې دكمال په درجه كـې مونـدل

کیږی ، په دې وجه سره سړی لره يې پر ښځه باندی قوامیت او اختیار ورکړیدی ، او دا دخاوند فریضه ده چې دی دښځی داخلاقو نګرانی وکړی، که چیری ښځه دکور دنوکرانو او اجنبی خلګو سره په نرمی اوخندا ټوقی اوخبری کوی نوهغه دی فوراً تنبیه کړی، او هغه دی ددې خبرو څخه منع کړی او په شروع کی ددې خبرو بندول آسانه دی، ددې څخه چې هغه وخت خاموشی اختیار کړل سی او بیا معامله مخ ته ولاړه سي، که چیری دښځی په دې حالت کی په لیدلو سره پر سړی باندی هیڅ اثر نه وسی او دهغه پر تندی باندی ګونجی رانسی نو داسی سړی دیوث دی چې په حدیث کی ملعون دی (یعنی لعنت پر سویدی) ښځه دی بالکل آزاده نه پریږدی چې دچا سره يې خوښوی، يې خوفه اوخطره ورسره خبری وکړی، چې دچاسره يې خوښه سی په خندا خبری وکړی، ښځه ډیره قمیتی جوهر دی ددې حفاظت دخاوند فریضه ده ، دغه ډول په کور کی بی وجهی دخلګو تګ راتګ هم زیات ساتل نه دی پکار .

## دسړی دپاره دښځی داصلاح طریقه

لیکن ښځی ته دتنبیه کولو او دهغې داصلاح دا مطلب نه دی چې سړی کله وغواړی په لږه خبر باندی ورپوری ومښلی، قهریدل

دهمکول او وهل او تکول شروع کړی دا دشرافت او انسانيت خلاف دی، نه دی په معمولی خبرو باندی لکه چاته په کتلو باندی یا دچا په خندلو باندی ښځه مشتبه او مشکوکه وګرځول سی، بلکه په سنجیدګی سره دهغې په احوالو باندی نظر ساتل پکار دی،

دښځی څخه که چیری څه نازیبا خبره (یا حرکت) صادر سی چی په هغې تاته تکلیف ورسیږی نوپه معمولی بی رُخی اوپه تندی ګونجی راوړلو سره دی تنبیه کړل سی، او که چیری هغه په دې سره پوه نسی نو دیوې یا دوو شپو دپاره خپله بستره دهغې څخه جلا کول پکار دی، که چیری ددواړو په زړو کی محبت وی نو دومره هم کافی دی، ذقهریدلو رټلو او دښکنځلو هیڅ ضرورت نسته ، لیکن که چیری هغه اوس هم دخپلی خبری (یابد حرکت) پرېښولوته تیاره نسی نو دلږ وهلو اجازت یې سته ، لیکن دنوکرانو په شان دوهلو څخه یې بیاهم منع فرمایل سویده، په یوه حدیث شریف کی راځی، چی څنګه عجیبه غوندی خبره ده چی سړی دورځی خپله ښی ښی دغلام او مینځی غوندی وهی او بیا دشپې ورسره نژدیکت کوی .

باقی دلته ددې خبری هم خیال ساتل پکار دی چی دښځی دطرفه په څه کورنۍ خبره باندی ناراضګی یا ستا دطرفه دڅه مطالبې په نه

پوره کولو باندی دهغې مروریدل طبعي شي بلکه دا دهغې دمحبوبانه فطرت خاصه ده (دا بد گڼل نه دی پکار).

**تنبیه**: سړی لره ددومری خبری ضرور خیال ساتل پکار دی چی که چیری دښځی په څه خبره باندی غصه ورسی نو بې واکه کیږی دی نه، بلکه خپل ځان په واک کی ساتل ډیر ضروری دی، رسول الله ﷺ فرمایلی دی چی په تاسو کی بهترین سړی هغه څوک دی چی دخپل کور والاوو سره ښه سلوک کوی زه دتاسو ټولو څخه زیات دخپل کور والاوو ښه سلوک کوونکی یم.

ځکه چی دهغې په بد خلقی او تیز مزاجی صبر کول ډیر ضروری دی، که چیری زیات غصه سی نو دهغه ځای څخه دی جلا (لیری) سی، تعوذ (اعوذ بالله) دی ووایی، اُوبه دی وچښی، په کوم حال کی چی وی هغه دی بدل کړی، یاد دې لری چی پهلوانان را غورزول بهادری او کمال نه دی بکله بهادری دا ده چی دغصې په وخت کی خپل ځان په واک کی وساتی او طبیعت او ژبه په کنټرول کی وی، کنې خدای ﷻ مکړه که په غصه کی څه خبره دخُلې څخه ووزی (مثلاً طلاق یې ورکړو) نو ټول ژوند به یې بدل سی، او بیا به ته هم افسوس کوی، دغصې په کیفیت کی څه مهم کار کول

دعقلمندی او شجاعت څخه خلاف دی، ددې دپاره چې کله غصه ولاړه سی نو ترهغې وروسته په سوچ او فکر سره او دمخلصو دوستانو او خپلوانو په مشوره کولو سره دی څه اقدام کوی .

ددې څخه علاوه څه خبری نوری هم داسی سته چې دهغو اختیارول دسړی دپاره دښځی دحق په تکمیل کی فائده مند دی :

۱. ښځه دی دبې پردگۍ څخه حتی الامکان لیری ساتی او دنا محرمه اجنبی سړو سره دربط اوضبط اوتگ راتگ څخه منع کړی.

۲. ښځی ته دخاوند په مخ کی همیشه په زیب اوزینت سره اوسیدل پکار دی، دپاره ددې چې دهغه نظر پربل چا بانـدی پرېنـوزی ، او ددې طرفته یې په زړه کی څه خیرن والی پیدا نـسی . ددې خبـری حکم په شریعت کی هم ورکړل سویدی بالخصوص چې کله خاوند دسفر څخه راسی نو ښځه دی زیب او زینت اختیار کړی ، حضور اکرم ﷺ چې به کله دسفر څخه تشریف راوړی نو دصحابه کرامو ؓ سره به یې دمدینې څخه دباندی قیام کوی دپـاره ددې چـی پـه مدینه کی ښځی ته اطلاع ورسیږی ، او هغوی صفا سُتره سی .

۳. دښځی په خاطر خاوند ته هم په صفا سُتره او ښـو جـامو کـی اوسیدل پکار دی ، دپاره ددې چې دهغې میلان هم دخاوند وطرف

ته باقي وی .

۴. که چیری بی بی داعلی جامو او کپړو او زیوراتو ډیره زیاته شوقمنده وی نوپه ډیر حکمت سره دی دزاهدانو واقعات او دالله تعالی دنیکو بندګیانو ښځو قصې او ددنیا دناپائیداری او دآخرت دفکر وغیره خبری دی دهغې په مخ کی پیش کړل سی، دپاره ددې چی دبې فائدې شیانو څخه او دضرورت څخه دزیات سامانه څخه بې رغبت کم سی، که چیری دغه رنګه دهغې رغبت کم نکړل سو نو دهغې دا هوس ټول کور بربادولی سی .

۵. دښځی مخی ته که دجامو اوکپړو وغیره وو څخه څه شی پردی په نظر درسی نو دهغه پوره تحقیق وکړی چی دکومه راغلی دی ؟ او ولی ؟ کنی دورانیدلو لاری په دغه رنګه شروع کیږی .

٦. دکاروبار کوونکو خلګو ته پکار دی چی ټول وخت دی خپل کار وبار ته نه وقف کوی بلکه څه وخت دخپلی بی بی سره دناستی ولاړی او خندلو ، خبرو دپاره هم ایستل پکار دی .

۷. که چیری بی بی سلیقه منده او نیکه وی نو کله نا کله په یوې جملې یا نیمی سره دهغې تعریف هم پکار دی. دپاره ددې چی هغې ته خوشحالی حاصله سی .

۸. دبی بی درمز اواشارو پېژندلو هم پوره کوشش کـول پکـار دی هغه ډېری خبری په ژبه سره نه وایی، البته په اشارو کی او دمخ پـه ناز او انداز کی یې وایی.

۹. بی بی ته دخپل اولاد په مخ کی بد رد ویل نه دی پکـار، کنـې دکور لطف به ختم سی، او اولاد به دخپلی مور سره بې باکه سی.

۱۰. دبی بی او بال بچ سره په انتهایی محبت او الفت سره اوسیدل زده کړی، دخیروونکی زمری او پړانګ په شان اوسیدلو عادت مه جوړوئ ، او مه هروخت حاکمانه شکل چلوی.

۱۱. دخپلی بی بی په وړاندی دبلی پردې ښځی تعریف مه کـوی ، خصوصاً دچا دحُسن او دجمال (تعریف کولو) سره بـه دهغـې زړه مات سی اوته به دهغې په نظر کی مشکوک جوړ سی.

۱۲. په خانه داری امورو یعنی دکور په کار او روزګار کـی دهغـې رایی ته اهمیت ورکوه ، ځکه چی په دې معامله کی اکثـره دهغـې رایه صحیح وی.

۱۳. دبی بی سره په څه خبره حجت بازی پکارنه ده ، چی دا دهغې سره مناسب نه ده ، هو دهغې دجذباتو په لحـاظ سـاتلو سـره دی ورسره سلوک وکړل سی، همدا خبره دهغې سره مناسبه ده.

۱۴. که چیری ښځه تعلیم یافته وی نوهغې ته ښه اخلاقی او مذهبی کتابونه دمطالعې دپاره ورکوه ، ناولونو، افسانو او خرافاتو ته درځخه لاس یونه سی .

۱۵. کله نا کله که په کور کی څه ګړبړ راسی نو دهغې صفایی په کور کی دننه کوه ، بهر یې په نورو خلکو کی مه خپروه .

۱٦. دبد اخلاقو ښځو سره یې هرګز ناستی ولاړی ته مه پرېږده ، کنې دا به هم درله برباده کړی (اوتا به هم برباد کړی) .

۱۷. که چیری په کور کی دمور سره یا دخوندو سره دبی بی څه ګړبړ راسی نو په ډیره ښه طریقه سره ددواړو دحقوقو خیال ساتلو سره خبره هواره وه ( یعنی ختمه وه) .

۱۸. دکور په معاملاتو کی نه ډیر زیات سخت او نه ډیر زیات نرم کیدل پکار دی .

۱۹. خدای مکړه که په یوه بد زبانه او بد اخلاقه ښځه باندی واوریدی او داصلاح یې هیڅ امید نه وی ، نو په داسی مجبوری کی دهغې په جلا کولو کی خیر دی، خو داخبره په ذهن کی کښېنول پکار دی چی په حدیثِ پاک کی صفا ارشاد دی چی ښځه دچپه اړخ دپاسنی پوښتۍ څخه پیدا سویده او هغه دټولو څخه زیاته

کړه پوښتي ده ، لهٰذا سره دکوږوالي دی دهغې څخه فائده اخلی، کنې که بالکل بې سیده کوی نو ماته به یې کړی ، ددې دپاره سړی لره حتی الامکان دبرداشت څخه کار اخیستل پکـار دی، څـومره چې کیدی سی دطلاقه څخه ځان ساتل پکار دی ، شریعت طلاق نه دی خوښ کړی ، ابغض المباحات یې ورته فرمایلی دی، یعنـی پـه مباحو، جائزو کارو کی ډیر بدکار دی، په دې باندی اقدام په ډیـر سوچ او فکر سره او دخپلو مخصوصو تعلقـدارو سـره دمـشورې څخه وروسته کول پکار دی، درې طلاقه ورکول او هغه هم په یوه ځل ډیر بد دی کیدی سی چی بیا پر پښېمانه وی .

۲. که چیری ښځه بیماره وی یایې په حس کی ګړبـړ وی نـو ژر دهغې دعلاج وطرفته توجه کول پکار دی .

## پر ښځه باندی دخاوند حقوق :

څنګه چې دسړی په ذمه دښځی ډیر شرعي او اخلاقـی حقـوق دی دغه ډول دښځی پر ذمه هم دخاونـد ډیـر حقـوق دی چـی دهغـو پرځای راوړل ددې ذمه واری ده (مثلاً) :

۱. دښځی په ذمه دخاوند تر ټولو لوی حق دادی چی کله دی خپل ځان وخاوند ته حواله کړی دی نو همیشه دی دهغه حفاظت کوی،

اوپه دې سلسله کې دې دهيڅ خيانت ارتکاب نه کوي ، خواه کـه

يې خاوند حاضر وي او که غآئب وي يعنی چيری پـه سـفر بانـدی

تللي وي، داجنبی سړی سره تعلق قآئمول داعلی ډرجې خيانـت او

بې لوظی ده .

۲. ظاهره ده چې کوم سړی دښځی سره نکـاح کړيـده دهغـه يـو

مقصد دادی چې دغلط ځای ځخه نفسانی خواهش پرېښوول او پـه

جآئز او حلال ځای کې پوره کول دی، ددې دپاره چې کله خاوند

ته ددې خبری تقاضا وي نو هغه ته دې ددې موقع ورکړل سی، او

په دې سلسله کې بې وجهي بهانه جوړول نه ده پکار، درسـول الله

ﷺ ارشاد دی چې که چيری خاوند تا دخپل ضرورت پوره کولـو

دپاره را وغواړی اوته ډوډۍ او طبخی ته ناسته يې نو بيا هم ته خپل

کار پرېږده او دهغه تقاضا پوره کړه ، دا خبره دې هم په خيال کې

وي چې که چيری خواهش پيدا سی نو ډورځی هم صـحبت جـآئز

دی، هيڅ حرج پکښې نسته ، په خپله دحضور اکرم ﷺ او بعضو

صحابه کرامو ﷺ څخه بعضی وخت په ورځ کې هم جمـاع کـول

ثابت دی.

۳. دخاوند چې مال او سامان وي دهغه حفاظت دی کوی هغه دی

دخاوند دمرضی (خوښی) څخه خلاف اوپه غلط ځای باندی نه خرڅ کوی ، دغه ډول دضرورت په کارونو کی دی هم فضول خرڅی نه کوی ، بلکه کفایت شعاری دی خپل شعار جوړ کړی .

۴. ښځی لره پکار ده چی دکور کار روزګار دی په ښه طریقه سره زده کړی او دخاوند دمزاج موافق دی دخوراک ، چیښاک هستوګنی او اغوستلو غوړولو انتظام وکړی .

۵. ښځی ته دخاوند په خبرو باندی او دهغه په کار باندی بار بار مروریدل او دخپلی څه خبری نه پوره کیدلو باندی ناراضه کیدل څه ښه خبره نه ده ، په دې سره په محبت کی کمی راځی، او خاوند یو بوج محسوسوی ، ښځی ته دداسی بې ډبه (بدو) عادتو څخه ډیر ځان ساتل پکار دی .

٦. ښځی ته په خاوند یا دهغه په څه خبره باندی غصه کیدل او بد کلامی کول، بد رد ویل ، ښکنځل کول، دانتهآء درجې بی حیایی او بی شرمی ده ، که چیری خاوند دخپل شرافت یا څه مجبوری په وجه څه نه وایی نو دهغه مطلب دا نه دی چی ته څه غواړی هغه به کوی، که چیری تا داسی وکړه نو دخاوند په زړه کی به ستا وقعت او محبت ختم سی، او عجیبه نه ده چی څه ورځی وروسته (که دغه

حال بر قراره وړ) وجدا والی (طلاق) ته نوبت ورسیږی او بیا بـه ستا اوښکی اوچوونکی هیڅوک نه وی .

۷. ښځې ته دخاوند دمور او پلار او وروڼو خوندو پـه معاملـه کـې دډیر روا داری او خوش اخلاقی رویـه سـاتل پکـار ده ، اګـر کـه دخُسر ګنی دخلګو څخه ورته څه تکلیف ورسیږی هم ، هروخـت دخاوند په مخ کی دخُسر ګنی دخلګو شکوه شکایت اوپه معمـولی خبره باندی مرورتیا به دښځی محبت کم کړی او داسی خو خامخا کیږی چی کله په یوه کور کی یوه دوې ښځې یا دوه څلور ماشومان وی نو هره خبره یې دخپل طبیعت موافقه نه وی، څه نا څه دطبیعت خلاف خبره خو به ورته را پیښیږی، ددې دپاره دخُسر ګنی دخلګو دلویو او وړو سره دی ښه سلوک ساتی، پـه دې سـره بـه محبـت زیاتیږی او دژوند مزه به دوچنده سی ، ښځې ته پکار ده چی دخپل قدرتی حسن او جمال او دزړه را کښونکی خبرو دی پوره حفاظت کوی ، دضآئع کیدو څخه دی یـې لیـری سـاتی دپـاره ددې چـی دخاوند نظر ددې څخه وانه وړی اوپه بل ځای کی ښخ نسی .

## دحمل ابتدآء او دهغې متعلق یو څو خبری :

دواده څه موده تیریدلو وروسته په عام طور سره ددواړو دا خواهش

وی چې الله تعالی راته اولاد راکړی، نو داسبابوپه درجه کې ددوارو ملاویدلو (یوځای لیدلو) سره اولاد کیدل هم شروع سی، لیکن بعضې وخت الله تعالی ژر اولاد نه ورکوی چې په هغه کې داسبابو باوجود دالله تعالی مشیت او فیصلې ته لوی دخل وی ددې دپاره په دې باندی مایوسه کیدل او نا امیده کیدل نه دی پکار ، دزړه بدولو او خفگان هیڅ ضرورت نسته ، نه خاوند ته دښځی څخه ناراضه کیدل پکار دی، بلکه دخدای پاک څخه دامید لرلو سره دعاء جاری ساتل پکار ده ، او که ضرورت وی نو په طبی طور باندی علاج کول پکار دی ممکنه ده چې په دوی دوارو کې دیوه صحت خراب وی یا دقوت او طاقت کمی وی ، کله چې صحیح علاج وسی نو امید دی چې ژر یا پس به بې اولاد ضرور وسی ، اوپه دې تاخیر کې به هم دالله تعالی یو مصلحت وی، که چیری کافی موده تیره سی او دطبی تحقیقاتو څخه وروسته دښځی دداسی کمزوری یا بیماری پته ولگیږی کومه چې داولاد کیدلو مانع وی ، او خاوند داولاد دپاره بل واده کول غواړی (۱) نو شرعًا ددې اجازت سته

---

(۱). خاوند ته ددوهمی نکاح حق هروخت حاصل دی لیکن داولاد دپاره دوهم واده قید ځې ددې دپاره ولگوی چې په عام طور سره خلگ داولاد دپاره دوهمه نکاح کوی.

لیکن په دواړو پیمانو کی عدل او انصاف قآئمول ډیر ضروری دی، او که چیری دحقوقو په ادآء کولو کی لږ دلته هلته طرفداری او میلان پیدا سی نو ددې انجام به ډیر بد وی، په حدیثِ پاک کی فرمایل سویدی چی دچا دوې ښځی وی او دی په هغو کی دیوې طرفته مآئل سو (او دهغې خیال بې زیات ساتی) نو دقیامت په ورځ به په داسی حال کی راسی چې دهغه بدن به را کوږ سوی وی، خلگ به دهغه دبدن په کوږ والی سره پوه سی چی دا مجرم دی او ده دښځو په مینځ کی انصاف نه دی کړی، ددې دپاره که ډیری ښځی بې وی نو دټولو یو قسم خیال ساتل ضروری دی، اوس چی کله ورته الله تعالی اولاد نصیب کړی نو دهغې اول منزل دحمل څخه شروع کیږی ، دحمل کیدل دمختلفو علاماتو څخه ظاهریږی چی په هغې کی اهم علامت دماهواری (میاشتنی) وینی حیض بندیدل دی، او زیاتره ښځو ته دزړه خرابیدلو او لټولو وغیره شکایت شروع کیږی، په داسی موقع باندی ښځی ته دخپل صحت پوره خیال ساتل پکار دی، اوپه خاص طور سره دطاقت او دمختلف قسمه مرضو څخه دحفاظت دپاره دیو حکیم په مشوره سره معجون او مقویات وغیره استعمالول پکار دی، ښځوته په دې

ورځو کی دقی او زړه خرابیدلو اوزړه بیریدلو شکایت عمومًا کیږی په دې وجه په موقع او بې موقع دتروو او نمکینو شیانو خوړلـو تـه شوق کیږی، دبعضو ښځو خاورو خوړلو ته شوق کیږی ، په داسی موقع ددې خیال ساتل پکار دی چی کم شیان دصحت دپاره فائـده مند وی دهغه خوړل پکار دی، او صحت ته نقصان ورکوونکـو او بدو شیانو ځخه پرهیز کول پکار دی، دغه رنګه دحمل په زمانه کی دټوپ وهلو ، منډی وهلو او ډېر زیات درونـد وزن پورتـه کولـو څخه ځان ساتل پکار دی، ورنه خطره ده چی دحمـل دغورزیـدلو سره به وینه شروع سی، دغه شان دحمل په ورځو کی دقـبض والا شیان مه استعمالوی اوچی کله دقبض شکایت پیدا سی نو دهغه فورًا علاج کوی، دغه رنګه ددست راوستونکو شیانو څخه ځان ساتی، ښځی لره دا هم پکار ده چی په دغـه ورځـو کـی هـشاشه بـشاشه خوشحاله اوسی، په دغه خفګان او فکر کی دی بالکـل نـه مبـتلا کیږی ، ددې څخه علاوه دبدن او جامو دصفایی سـره دی زړه او دماغ هم (دګنده او بدو خیالاتو) څخه پاک او صاف ساتی، ځکـه چی ددې اثر په قدرتی طور سره په نس کی پردنـنـه ماشـوم بانـدی پرېوزی ، ددې دپاره په دې ورځو کی مور تـه انتهـآیی پـاکیزه او

مهذبه اوسیدل پکار دی، او دحمل په ورځو کی دجماع صحبت
کولو څخه حتی الامکان ځان ساتل پکار دی، خصوصًا په اولو
څلورو ۴ میاشتو کی او داومی ۷ میاشتې څخه وروسته دپاره ددې
چی حمل ته څه نقصان پیښ نسی (البته په شرعی طور سره په جائز
والی کی څه خبره نسته) ښځی ته چونکه دحمل په ورځو کی کافی
تکلیفونه وی بیا دا موده هم کمه نه وی، بلکه تقریبًا تر نو ۹
میاشتی پوری وی بیا دټولو څخه زیات تکلیف دماشوم دپیدا کیدلو
په وخت کی وی څنګه چی په قرآن کریم دمور داهمیت او دمغې
دعظمت ښوولو دپاره ددې تکلیفونه په خاص طور سره ذکر
سویدی ، لکه چی فرمایې: حَمَلَتْهُ اُمُّهُ وَهْنًا عَلٰی وَهْنٍ ، دده مور
دی په خپله ګیډه کی ساتلی وو، په کمزوری باندی کمزوری
برداشت کولو سره . دغه رنګه بل ځای ارشاد دی: حَمَلَتْهُ اُمُّهُ
كُرْهًا وَّوَضَعَتْهُ كُرْهًا ، دده مور دی په ګیډه کی وساتلی په تکلیف
سره ، او وې زیږوی په تکلیف سره .
او چونکه تکلیف دیو ماشوم په وجه سره دی، اودغه ماشوم به
دخدای ﷻ مومن بنده وی، درسول الله ﷺ په امت کی داضافی
سبب ګرځی، دیندار او حق ته رابلونکی به وی، ددې دپاره په

حدیث پاک کی ېې ثواب هم بیان فرمائیلی دی، لکه چی رسول الله ﷺ فرمائی چی ښځه دحمل څخه واخله تر.شیدو پرېکولو پوری دهغه غازی په شان ده څوک چی دسرحدونو نګرانی کوی او دداسی غازی لوی ثواب دی، دغه رنګه په حدیث پاک کی دی چی که چیری ښځه دزیږدنی په درد کی وفات سی نو شهیده به سی ددې دپاره ښځی لره دحمل او لنګون تکلیفونه په خندا او خوشحالی برداشت کول پکار دی، دا صرف دانسانی خواهش تکمیل نه دی بلکه په دې باندی به وه دې ته لوی ثواب تر لاسه کیږی ، هوبعضی وخت اولادونه ډیر سی او اوس لا اول ماشوم شیدی خوری یا دبی بی صحت کمزوری دی او تقاضا داده چی بل ماشوم ونسی بلکه څه تاخیر پکښی وسی، نو ددې دپاره شریعت څه صورتونه جائز لرلی دی، په کومو کی چی نه سړی ته نقصان وی اونه ښځی ته ، په دې کی یو صورت (او طریقه) عزل دی یعنی دبی بی سره دجماع کولو په وخت کی چی کله دانزال وخت راسی نو دهغې څخه دی جلا سی دپاره ددې چی منی دباندی خارجه کړی ، همدغه شان یو حکیم صاحب دا طریقه لیکلی ده چی ښځه دصحبت څخه وروسته فوراً ودریږی او مخ په شا روانه سی نوپه

دې سره حمل قرار نه نیسی ، گواکی شریعت دداسی طریقو اختیار کولو اجازت ورکړیدی ، په کومو کی چی په وقتی طور سره حمل قرار ونه ونیسی ([1]) او سړی او ښځی دواړو ته پکښی نقصان نـه وی، نن صبا چی کومی دنس بندی وغیره سلسله شـروع سـویدی هغه یا خو دهمیشه دپاره داولاد دسلسلې دختمیدلو ذریعـه وی ([2]) (کوم چی دالله تعالی ورکړی دیو قوت بالکل ضائع کول دی) یا بیا داسی صورتونه دی په کومو سره چی اگر چی که دهمیشه دپاره خو سلسله نه بندیږی لیکن ښځی یا خاوند ته سخت نقصان رسـیږی او صحت ورسره بربادیږی چی دهغې مشاهده ورځ تر ورځی کیږی ، مثلاً دحمل بندوونکی زهرجنی گولی استعمالول یا سړی لره نرووده

---

([1]). په دې سلسله کی جدید آلات هـم شـامل دی، لـیکن دگـوگ ددوا استعمال سره نقصان تړلی وی . مترجِم

([2]). نن صبا دخاندانی منصوبه بندی تحریك لـه خـوا داولاد نـه راوړلـو یا یـو او دوو راوړلـو ، دعـزل او نـس بنـدی (هغـه کـه عارضـی وی یـا دآئمی) کولو تحریك په مسلمانانو کی په ډیر زور او شور سره شروع دی، په کروړو روپی پردې تحریك خرڅیږی ، او دا عام اعـلان کـوی چی که څوك نس بندی کوی هغه ته دومره انعام ورکوو، یا یوه جـوړه صرف یو یا صرف دوه ماشومان راوړی هغه ته دمیاشتی دومـره روپـی ورکـوی ، ددې تحریـك لـوی مقـصد دا دی چـی دمـسلمانانو آبـادی کموی . مترجم عفی عنه

وغیره استعمالول ، کومو سرو یا ښځو چی دا قسمه طریقه اختیار کړیده هغوی دخپل صحت څخه لاس مینځلی دی.

## دولادت بیان :

کله چی دماشوم دپیدا کیدلو وخت را نژدی سی نو مناسب دادی چی کورته دی ښه ماهره دایی را وبلل سی دپاره ددې چی دپیدائش دوخت او دنورو شیانو صحیح اندازه ولګول سی، که ددې سره طبی او ډاکټری مشورې او علاج وغیره هم شامل سی نو ښه خبره ده ، نن صبا دا رواج جوړ سویدی چی دولادت په وخت کی ښځه هسپتالوته حواله کوی، چونکه هلته غیرِ مسلمه دایانی وی او بی پردګی هم زیاته وی او ټول ماحول غیرِ اسلامی وی په دې وجه دکور پاک ماحول پرېښوول او هلته تلل ښه خبره نه ده ، هو! که چیری مجبوری ، ښځی ته سخت تکلیف یا بیماری وی یا پروخت دایی پیدا نسی نو بیا هسپتال ته دتللو ګنجآئش سته ، اوس دولادت څخه وروسته دیو څو خبرو نشاندهی کوم :

۱. دماشوم دپیدا کیدلو وروسته دی هغه پاک صاف کړی او غسل وغیره دی ورکړی او په رسته غوږ کی دی اذان او په چپه غوږ کی دی اقامت ور وکړی.

۲. که یو بزرګ یا نیک سړی وی نوپه هغه دی تحنیک وکړی یعنی په هغه دی کهجوره (وچه خُرما) وچیچی او نرمه دی کړی او دماشوم په تالو کی دی ووهی دپاره ددې چی تر ټولو څخه مخکی دنیک سړی او دکهجوری خوړوالی ورته ورسیږی چی دبرکت شی دی .

## دعقیقې بیان :

۳. په اومه ۷ ورځ دماشوم عقیقه کول سنت دی، که په اومه ۷ ورځ ونسی، نوبیا چی کله موقع ترلاسه سی نو دولادت دورځی څخه په ورپسی ورځ باندی عقیقه کول پکار ده ، مثلاً که دسه شنبې په ورځ باندی پیدا سوی وی نو دچار شنبې په ورځ دی عقیقه وکړی، عقیقه دهلک دطرفه دوه پسونه او دجینی دطرفه یو پسه دی، که دهلک دطرفه یو حلال کړی نو هم کافی دی،

۴. دعقیقې په ورځ دماشوم دسر وریښتان خریل او دهغو دوزن په مقدار سپین زر خیرات کول مستحب دی، په حدیث کی ددې حکم هم راغلی دی، دانسانی بدن څخه جلا کړل سوی نوکان وغیره په یو پاک ځای کی ښخول پکار دی، دلته هلته غورځول یې ډیر بد دی په دې کی دبیماریو او آفتو خطره ده .

۵. چې ماشوم په کوچنیوالي کې سنت سي نو بهتره ده ، دزیات عمر کیدلو انتظار دې نه کوی .

٦. ماشوم چې په زانګو کې بیده کوی ، الله هو ورته ویل ، او فائده مند نظمونه وغیره ورته اورول هم ښه دی .

۷. ماشوم لره دې ښه نوم کښېښول ، عبد الله ، عبد الرحمٰن او دحضراتو انبیاوو علیهم السلام او دصحابه کرامو رضی الله عنهم اوصحابیاتو رضی الله عنهن په نومونو باندې نوم ایښول زیات ښه دی ، دقیامت په ورځ به هر څوک دمحشر په میدان کې په نومونو سره رابلل کیږی ، په هغه وخت کې به په خرابو نومانو سره پښېیمانتیا وی .

## داولاد پر وفات باندی صبر :

بغضې وخت خدای پاک سړی ته اولاد ورکړی او بیا یې تری واخلي دا یقیناً ډیره دصدمې خبره ده خوپه دغه موقع باندی هم دصبرضبوررت دی ، ډیرپه حوصله دی اوسی دسترګو څخه اوښکی بهیدل اوپه زړه کې غم راتلل خو طبعي خبره ده خوپه ژبی سره دی هرګزڅه خبره دبی ادبی نه کوی ، نه دی په زړه کې دغه ډول څه بد خیال راولی بلکه ځان دی کلک کړی اوصبر دی وکړی ، دآخرت اجر او ثواب دی پیش نظر ولری ، په حدیثِ پاک کې دنابالغه

ماشومانو پرمرګ بانـدی دصـبر کـوونکی ښـځی دپـاره دجنـت خوشخبری او بشارت راغلی دی، ددوو ماشومانو پر مرګ دصـبر کوونکی ښځی په باره کی پوښتنه وکړل سوه نو دهغـې دپـاره هـم دجنت وعده وفرمایل سوه، او دیوه ماشوم پر مرګ بانـدی دصـبر کوونکی ښځی دپاره هم په حدیث پاک کی دجنت وعده موجـوده ده نو په داسی موقع داولاد په محبت کی په بی صبری کولـو سـره دی جنت دلاسه نه ورکوی، بلکه په صبر اوپه ځان کلکولـو سـره دی درسول الله ﷺ دبشارتونو څخه فائده پورته کړی .

## درضاعت متعلق یو څو خبری :

۱. دماشوم دپاره موافق شیدی صرف دخپلی موردی ددی دپاره دټولو څخه بهتره داده چی خپله مور دی ورته شیدی ورکړی لیکن که خدای مه کړه څه مجبوری وی یادمور شیدی خرابی وی بل څوک شیدی ورکونکی دی ورلره مقرره کړه سی .

۲. شیدی ورکونکی ښځه دی هم دماشوم دمور په شان خپل ذهن او زړه دبدو خیالاتو اوخرافاتو څخه لیری ساتی ځکه چی دشیدو ورکولو په زمانه کی هم دشیدو ورکونکی دطبعیت اودهغه داخلاقو اثر دماشوم پر زړه اودماغ باندی پریوزی .

۳. شیدی ور کونکی ته دخپل صحت پوره خیال ساتل پکاردی او که سهولت او گنجائش وی نوبنه خوراکه دی استعمالوی دپاره ددی چی دماشوم پر قواء اوبدن باندی بنه اثر پریوزی .

کله چی ماشوم په بنه اوبد پوه سی نواول ورته دخدای پاک دنوم او کلمه طیبه دزده کولو کوشش پکار دی چی کله دپوهی خاوند سی نو اول دی ورته په مکتب پاکورکی ددینیاتو تعلیم ورکول سی، دهغه په مخ کی څه نازیبا حرکت هیڅکله نه دی کول پکار، او که څه غلطه خبره (یاحرکت) دهغه څخه صادر سی نودهغه څخه دمنع کولو کوشش دی وسی، والدین دی دهغه دفلاح اواصلاح دعاوی غواړی، غرض داچی دهغه دتربیت اوتعلیم دی پوره خیال وساتل سی دغفلت څخه کار هیڅکله اخیستل نه دی پکار . دمور غیږ دماشوم دټولو څخه اولنی مدرسه ده. ددی زیات تفصیل به زما په رساله (تحفه الوالد) کی ترلاسه سی.

داهل اوعیال دتعلیم اوتربیت آسانه طریقه نن سبا داده چی په کور کی دریدیو اوتیلی ویژن پرځای ددینی کتابو تعلیم په پایندی سره کول پکاردی. کله دی په خپلو کی دمسائلو تذکره وی، کله دی دمختلفو اوقاتو اوحالاتو دعا گانی زده سی، که څه وخت په

پابندی سره دتسبیحاتو اوتلاوت مشغله وی نو کوربه یوقسم مدرسه اوخانقاه جوړه سی اودکور خلک به ان شاء الله په صحیح رخ باندی روان سی.

## داولاد پر ذمه دمور او پلار حقوق :

کله چی اولاد صحیح فکر داره سی نو دهغو په ذهن کی دا خبره په ښه شان کښېنول پکار دی چی دهغو پرذمه دمور اوپلار ډیر حقوق دی، هغوپه کوچنیوالی کی (داماشوم) اولادپه ډیر مشقت اوتکلیف برداشت کولو سره پاللی دی، اوبیا مور ضعیف الخلقة (پیدایشتی کمزوری) هم ده، اودماشوم دتولو څخه زیات تکلیف دا برداشت کوی (چی دهغه ذکر قران هم کوی) ددې دپاره دهغه دحقوقو اهمیت اوعظمت نورهم زیات دی، په دی وجه داولاد پرذمه دمور او پلار تابعداری او دهغو فرمان برداری ضروری ده، دمور او پلار تابعداری او دهغو فرمان برداری ضروری ده، دمور او پلار نافرمانی دټولو څخه لویه ګناه شمار سویده، اوپه یوه حدیث کی دکفر او د شرک څخه وروسته دټولو څخه لویه ګناه داښوول سویده، ددی زیات تفصیل به زماپه رساله (تحفة الوالد) کی ترلاسه سی اوپه هغه کی دمور اوپلار داطاعت اوفرمان برداری ډیر واقعات هم لیکل

سوی دی چی دمور اوپلار په خدمت اوفرمان برداری سره دهغو په رزق اوکار وبار کی برکت پیداسو اوپه جنت کی دداخلیدو بشارت ملاو سو او دهغوپه نافرمانی باندی په دنیاکی څنګه محرومی او ناکامی ملاو سوه اوپه آخرت کی به درباندی څنګه وبال راځی په دی وخت یوه دوې واقعی مختصرًا په دی موقع باندی بیانوم:

## دبنی اسرآئیلو ددریو سړو واقعه :

په بنی اسرائیلوکی دری سړی چیری تلل په لاره کی باران درباندی شروع سو، دری سره دباران څخه دځان ساتلو دپاره دغره په یو غار کی ننوتل، اتفاقًا پر هغه غاره باندی دلوړی څخه یوه ډبره راوغړیده (اودغاری په خوله کی ودریده). چی په هغه سره دغاری خوله بالکل بنده سوه اواوس دوتلو هیڅ لاره نه وه اویقین یې راغلی چی اوس موهلاکت یقینی دی، دی دری سره وو په خپلوکی فیصله وکړه چی هرسړی دی دخپل یونیک عمل په واسطه سره دعاء وغواړی کیدی سی چی دهغه دبرکته موږته نجات ملاوسی، نوپه هغو کی یوه سړی (دچاچی دلته ذکر مقصود دی) دادعا وکړه چی یا الله ! تاته معلومه ده چی زه روزانه رمه څروم دشپی چی واپس راسم نوشیدی ولوشم اوپه موز اوپلار باندی یې وڅښنم، دهغه

وروسته یې خپلو ماشومانو ته ورکوم، یو وخت مابنام په تک رانګ کی ناوخته سوچې کورته راورسیدم نومور اوپلار مې بیده سوی وه، چې شیدې مې ولوشلې نو ماشومانو مې غوبنتل شروع کړل لیکن ما وویل چې ترڅو پورې مې مور اوپلار نه وی چیښلی تاسی ته یې نه درکوم، اودهغو بیداره کول مې مناسب نه وګڼل دشیدو پیاله په لاس سرته ورته ودریدم چې کله بیداره سی نو ورباندې وبه یې وچیښم ماشومانو راته زاری کولی تردی پورې چې سهار سو، چې کله هغه راپورته سول نو مې (شیدې) ورباندی وچیښلې، بیامې ماشومانو ته ورکړی، یا الله، ددې عمل په وسیله سره دعا کوم چې لاره راکړې، نوهغه کاڼی لږ لیرې سو، چې په هغه سره لږهوا راتلل شروع سوه اورڼا سوه، لیکن وتلی نسوه، دغه رنګه دوهم اودریم سړی دخپل خپل نیک عمل واسطه وکړه اوهغه کاڼی دغاره څخه لیرې سو اولاره ورته ملاو سوه.

## دحضرت موسیٰ ﷺ دجنت ملګری :

حضرت موسیٰ ﷺ دعا وکړه چې یا الله په جنت کی به څوک زما ملګری وی هغه راوښیی، الله ﷻ ورته وفرمایل چې په فلانی ځای کی دا قسم سړی دی هغه ووینه چې په تلاش تلاش هلته ورسیدی

نوری لیدل چی یوسړی دی او دهغه مور بالکل بوډۍ شله دګر خیدلو اوحرکت کولو څخه معذوره ده، داسړی محنت او مزدوری کوله او روزانه دواړه وخته به یې خپل مورته په خپل لاس سره ګوله ورکوله او دهغې ټول خدمت به یې کوی اوهغې به ورته ددی خدمت په هکله کی دعا کوله چی زویه ! الله دی تاپه جنت کی دموسٰی علیه السلام ملګری جوړ کی.

## چی مور ناراضه وی نو په ځګندن کی کلمه پر ژبه نه جاری کیږی :

درسول الله ﷺ په زمانه کی یوځوان سړی ومرګ ته نژدی سو، رسول الله ﷺ تشریف راوړی اودکلمی تلقین یې ورته کی لیکن دهغه پرژبه کلمه نه جاری کیده حضور ﷺ پوه سوچی مور ترینه ناراضه ده، بیایې دهغه مور راوغوښته او ورته یې وفرمایل چی آیا ته غواړی چی ستا زوی ددوږخ په اور کی وسوځی ؟ هغې وویل چی یا نوورته یې وفرمایل چی دزوی څخه دی کمه غلطی سویده هغه ورمعاف کړه، او دده څخه راضی سه، نوهغې زوی معاف کړی او دزوی په ژبه یې کلمه جاری سوه، بیا وفات سو، وګوری دمور په ناراضګی باندی څومره وبال راځی .

## سوالونه او جوابونه:

دواده متعلق بعضو دوستانو دډیرو خبرو پوښتنه کړی وه، اوځه خبری داسی وی چی دسوال اوجواب په طور باندی دهغو دمرتب کولو فائده محسوسه سوه نوهغه خبری دسوال اوجواب په انداز باندی بیانول کیږی.

**سوال:** سړی ځوان سو اودواده سخته تقاضا ده لیکن مالی گنجائش ورسره نسته نودی څه وکړی؟

**جواب:** رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چی دروژو مداومت دی وکړی، یعنی روژی دی ډیری نیسی نو ان شاء الله دشهوت زوربه یې کم سی، او دغلطو کارو څخه به محفوظه اوسی (خیال دی وی چی روژی دخوراک دکموالی سره ساتل پکاردی چی نس څه خالی اوسی چی ددی فوائد حاصل سی).

**سوال:** دقریبی رشته داره (خپل، قریب) جینکی سره (کومه چی غیرِ محرمه وی) نکاح کول جائز دی؟

**جواب:** کومی ښځی چی محرمی نه دی (دکومو سره چی شرعًا نکاح کول حلال دی) دهغو سره په نکاح کولو کی هیڅ حرج نسته اگر که نژدی رشته دار وی لکه دتره او دماما لونی.

**سوال:** درخصتی په موقع حُجرهٔ عرسی یعنی دناوی کمره بنهٔ ډولی کیږی اوپه خلاص زړه ورباندی پیسې خرڅ کول کیږی آیا. دا صحیح ده ؟

**جواب:** اسراف او فضول خرچی حرامه ده ، هو لږ ډیر زینت او دهغې په بنه جوړولو کی څه حرج نسته .

**سوال:** دکوزدې ښځه وروسته دواده ښځه مخ کی دپیغلې سره میل میلان، خبری اتری کول او هغې ته کتلی سی ؟

**جواب:** صرف دنکاح کولو په اراده سره اجنبی (پردۍ) جینکۍ ته کتلی سی که خوښه يې سی نو کوزده ورسره وکړی، بیا بار بار ورته کتل جائز نه دی، ترڅو پوری چی نکاح ونسی دنکاح ښځه مخکی هغه اجنبی (پردۍ) ده ، ددې دپاره تعلق قائمول، خط، کتابت ورسره حرام دی .

**سوال:** دماشوم پیدا کیدلو په وخت کی په هسپتال کی داخلول څنګه دی ؟

**جواب:** که چیری بیماره سی یا پر کور باندی دصحیح علاج بند وبست نه وی یا ورسره دخیال کولو څوک نه وی او یقین يې راسی جی په کور کی به ماشوم ته یا مورته به يې تکلیف وی نو هسپتال ته

په ورلو کی هیڅ حرج نسته ، خو دمجبوری لو ضرورت څخه بغیر بنه نه دی.

**سوال**: دځه مصلحت په وجه نسل بندی کول او داولاد سلسله ختمول څنګه دی ؟

**جواب**: نس بندی اود خطرناکو دوایانو استعمالول جائز نه دی، البته عزل او دوقتی مانعِ حمل دوایانو اجازت سته (هغه هم چی په وخت دمجبوری کی وی) په دې شرط چی په هغه سره څه نقصان نه کیږی .

**سوال**: که خاوند دخپلی ښځی څخه ناراضه سی نو آیا طلاق ورکړی ؟

**جواب**: دطلاق دمجبوری درجه ده، ړومبی دوخت تیرولو کوشش پکار دی که زیات جنګ او جدل راسی نو مصالحت دی پکښی وکړل سی که دا نه وی نو بیا دی ددوستانو او مخلصینو سره دمشورې څخه وروسته دمجبوری په حالت کی طلاق ورکړل سی، که نه وی نو سراسر پښېمانی به وی .

**سوال**: دورځی دبی بی سره صحبت کول اوپه کثرت صحبت کولو کی څه حرج خو نسته ؟

**جواب:** دورځی صحبت کول جائز دی لکه څنګه چی دشپی جائز دی اوکه په صحت باندی اثر نه پریوزی نوپه کثرت سره په جماع کولو کی هیڅ حرج نسته البته دخپل صحت ضرور خیال ساتل پکار دی .

**سوال:** دنامه څخه دلاندی وریښتانو دصفایی موده څومره ده ؟

**جواب:** په پنځلسو ورځو کی دی وکړل سی اوڅلویښت ورځی بې آخری حد دی، ددې څخه وروسته به ګناه وی .

**سوال:** دوریښتانو صفایی به په کومه طریقه کوی ؟

**جواب:** په کوم مشین یا مروجه آلاتو وغیره سره چی وریښتان صفا کیږی دهغه په استعمال کی بدیت نسته ، ښځی دی چونه یا پوډر استعمالوی په کومو سره چی وریښتان صفا کیږی .

**سوال:** دغه وریښتان به کوم ځای غورځوی ؟

**جواب:** ښخول یې پکار دی دلته او هلته دی یې نه غورزوی .

**سوال:** ښځه به دسر وریښتان څومره ساتی آیاپرېکول یې جائزدی ؟

**جواب:** ښځی ته دسر وریښتان ساتل ضروری دی، او دا دهغې دپاره فطری زینت هم دی، دهغې دپاره خریل یا پرې کول جائز نه دی او دسرو غوندی وریښتان ساتل ور لره نوره هم سخته ګناه ده .

**سوال:** دوربښتانو ږمنځولو څه طریقه ده ؟

**جواب:** په حدیث کی راځی چی رسول الله ﷺ به چی کله ږمنځول کول نواول به یې درسته طرف وربښتان ږمنځول بیا دچپ طرف دا ، خو دسر دوربښتانو بالکل په مینځنی حصه به یې لاره هم ایستله ، دغه طریقه سنت ده.

**سوال:** ښځه وربښتان ښکاره کولی سی ؟

**جواب:** دښځی وربښتان هم په ستر کی داخل دی، ددغه وربښتانو پټول ضروری دی په دې وجه پرونی وغیره دی په داسی طریقه پر سر کوی چی وربښتان یې ښکاره نسی که نه نو سخته ګناه به وی.

تمت

مترجم :

ابو مزمل آخند زاده

تصحیح :

مولانا حافظ محمد أحمد الحقانی الافغانی

مکتبه رحمانیه ، کاسی روډ ، کوټه

